# پښتو

## د فارسي ژبو لپاره

ځ

ښ ې ي

ړ ڼ

انار شیرین است

الله یو دی

این آسمان است

انار خوږ دی

لیکوال: محمدرحیم درانی

د بخښونکي او مهربان خداي په نامه

# لومړۍ لوست

| د پښتو ژبې توري/حروف زبان پشتو | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ا | ب | پ | ت | ټ | ث | ج | ځ | چ |
| ح | څ | خ | د | ډ | ذ | ر | ړ | ز |
| ژ | ږ | س | ش | ښ | ص | ض | ط | ظ |
| ع | غ | ف | ق | ک | ګ | ل | م | ن |
| ڼ | و | ه | ء | ي | ى | ئ | ې | ۍ |
| | | | | ی | | | | |

## طرز خواندن حروف پشتو

ټ: مثل "ت" ولی با شدت

ځ: مرکب از "ت + ز"

څ: مرکب از "ت + س"

ډ: مثل "د" ولی با شدت مثل d انگلیسی

ړ: مثل "ر" (باید سر زبان را با بالاي دهان چسپانده و همراه با خروج هوا برگردانید).

ږ: مثل "گ" به لهجهٔ پشاور و مثل " ژ" به لهجهٔ قندهار

ښ: مرکب از "ت + خ" به لهجهٔ پشاور و مثل " ش" به لهجهٔ قندهار

ګ: همان "گ" فارسی است.

ڼ: مرکب از "ن + ړ" است که صدای آن از دهان و بینی باهم بیرون می آید.

در بارهٔ "ی، ي، ى، ئ، ې، ۍ" در درسهاي بعدي توضیح داده شده است

# دویم لوست

## ا ، آ

| | | | |
|---|---|---|---|
| انار | آس | دا انار دی. | انار خوږ دی. |
| الله | آدم | الله یو دی. | خداي مهربان دی. |
| اور | آسمان | دا اور دی. | اور تود دی. |

**نوي ټکي** (الفاظ جدید):

انار: انار آس: اسب اور: آتش دی : است دا: این خوږ: شیرین تود: گرم

## مشق

جمله هاي زیر را ترجمه کنید.

۱. این آسمان است.
۲. این آدم است.
۳. این اسب است.
۴. انار شیرین است
۵. آدم مهربان است
٦. اتش داغ است

# دریم لوست

## ب ، پ

| | | | |
|---|---|---|---|
| بابا | بازار | دا بابا دی. | دا پاڼه شنه ده |
| بې بې | بزه | هاغه بې بې ده. | دا بزه سپينه ده |
| پېښور | پاڼه | دا پېښور دی. | بازار پاک دی. |
| پوزه | پاک | دغه پوزه ده. | بابا ضعیف دی |

نوي ټکي:

بابا: پیرمرد/ پدر بزرگ بې بې: مادر بزرگ پېښور: پشاور پوزه: بینی هاغه: آن
دغه: این بزه: بُز پاڼه: برگ شنه: سبز(مؤنث) سپین: سفید ضعیف: پیر

**یادونه:**

ي: به این یاء یاي سنگین گفته مي شود که در پشاور بصورت " ی" نوشته می شود.
ې: به این یاء یاي سبک گفته می شود و مثل یاء لین عربی (یاء ساکن ما قبل مفتوح) تلفظ مي شود
ئ، این یاء کشیده خوانده می شود این مخصوص صیغه جمع مخاطب است
ۍ: این یاء علامت مؤنث است (هم در مفرد و هم در جمع)

ی: این یاء مخصوص رسم الخط پشاوري است که براي مفرد بکار می رود ولی در قندهار بجاي این یاء "ی" نوشته می شود.

## مشق

جملات زیر را به پشتو ترجمه کنید: https://telegram.me/pashto https://telegram.me/pashto

| | | |
|---|---|---|
| ۱. این بز است | ۳. آن بازار است | ۵. این قم است |
| ۲. آن برگ است | ٤. این بینی است | ٦. قم مقدس است |

# څلورم لوست

## ت ، ټ/ دلته هلته

| | | | |
|---|---|---|---|
| چوکۍ | تبر | دلته چوکۍ ده. | دلته تاڼه ده. |
| تلاوت | تاڼه | هلته تبر دی. | هلته ټانګه ده. |
| ټال | ټانګه | ټال هاغه دی. | دا د قران تلاوت دی. |

### نوي ټکي:

چوکۍ: صندلی تاڼه: پاسگاه پلیس ټال: تاب ټانګه: گاری اسب
هلته: آنجا دلته: اینجا

تذکر: در این درس "ټانګه، تاڼه، چوکۍ" مؤنث اند. در جاي که لفظ مؤنث باشد لفظ نسبت در فارسی "است" برای مذکر و مؤنث هر دو بکار می رود ولی در پشتو برای مذکر "دی" و برای مؤنث "ده" و برای جمع "دي" بکار می رود. که در تمرین زیر توجه شود.

## مشق

ترجمه کنید:

| | | |
|---|---|---|
| ۱. این پاسگاه است | ۳. اینجا اسب است | ۵. آن صندلي است |
| ۲. انجا تاب است | ٤. انجا برگ است | ٦. این قرآن است |

# پینځم لوست

## ج ، ح ، څ

| | | | |
|---|---|---|---|
| کور | څانګه | دا لویه جرګه ده. | دا څانګه شنه ده. |

| | | | |
|---|---|---|---|
| جوار | جارو | هلته جوار دي. | حلوا سپینه ده. |
| جرګه | میز | جوار پاخه دي | دا څلور میزونه دي. |
| څپلۍ | څلور | دا یو میز دی. | دا جوار شنه دي. |

**نوي ټکي:**

کور: خانه جوار: زرت جرګه: مجلس شورا ،اجتماع لویه، لوي: بزرگ پاخه: رسیده،پخته یو: یک څپلۍ: کفش څلور: چهار څانګه: شاخ، حصه

**یادونه (تذکر):**

همانطور که در درس قبل واضح شد با مذکر و مونث بودن یک اسم نسبت و صفاتشان هم مذکر مؤنث می‌شود که در جملات زیر توجه شود.

## مشق

**جملې جوړې کړئ**

١. اینجا شورای بزرگي است
٢. اینجا یک جارو است
٣. انجا یک بز است
٤. این برگ پاک است
٥. شاخه بزرگ سبز است
٦. چهار میز سفید اینجا است

# شپږم لوست

# خ ، څ ، ځ

| | | | |
|---|---|---|---|
| خاوره | خېټه | دا زما خاوره ده. | دا زما ځنځیر دی |
| ختکی | ځان | دا ستا ختکی دی. | دلته ستا کور دی |
| ځنځیر | څناور | دلته شین چمن دی. | دا زما پوزه ده |
| چمن | څوک | دا د هغه ځنځیر دی. | دا د هغه څناوران دي. |

**نوي ټکي:**

خاوره: خاک ختکی: طالبی ځنځیر: زنجیر خېټه: شکم ځان:خود څناور: حیوان(جمع= څناوران) چوک: چهار راه شین: سبز زما: مال من ستا: مال شما

د هغه: مال او

**یادونه (تذکر):**

در این درس از حالت اضافی ضمیر: "زما، ستا، د هغه" استفاده شده که به معاني: مال من، مال شما و مال او می باشد، با استفاده از ان جملات جدید را تمرین کنید.

## مشق

**جملې جوړې کړئ:**

| | | |
|---|---|---|
| دا | خاوره | |
| هاغه | خېټه | |
| دا زما | تختې | ده. |
| دا ستا | جوار | دی. |
| دا د هغه | ځناور | دي. |
| دلته | جارو | |
| هلته | خټکی | |

# اووم لوست

## د ، ډ ، ذ

دوا دانه دا زما دانې دي. دا دانې شنې دي
دړد ډیوه دا یوه ډیوه ده. ډیوه رڼا لري. دا د هغه ډیوه ده
ډوډۍ ډېر ډوډۍ ډېر خوند لري. خټکی هم خوند لري. زما خټکی خوږ دی
ورور رڼا ذکي ستا ورور دی او زما ملګری دی.

نوي ټکي:

دوا: دوا دړد: درد ډوډۍ: نان ډېر: خیلی/ زیاد ډیوه/څراغ: چراغ دانه: دانه
(دانې = جمع دانه) لري: دارد ورور:برادر ملګری:دوست

## مشق

الف: جملې جوړې کړئ.

۱. انار خیلی مزه دارد. ٤. ذاکر دوست شما است. ۷. درد من زیاد است
۲. این چراغ او است. ٥. انجا روشنایی زیاد هست. ۸. برادر تو دوست من است
۳. طالبی من سبز است. ٦. انجا یک چهار راه بزرگ است. ۹. خانه شما اینجا است

ب: خالي ځایونه ډک کړئ

۱. دا یوه............ده. ۲. دا یو ............دی. ۳. دلته ............دي. ٤. ډیوه..........لري.
5. هلته څلور..........دي. ٦. ستا کور ............دی. ۷. هاغه یو..........دی. ۸. دلته ..........دي.

# اتم لوست

## ر ، ړ ، ښ

زۀ >> مونږ >> زما >> زمونږ ړوند هغه ړوند سړی دی. د هغه ښار نوښار دی
تۀ >> تاسو >>ستا >> ستاسو ښار پیښور زمونږ ښار دی. هلته ډېر کورونه دي.

هغه >> هغوي >>د هغه >> د هغوي ښائسته کندهار يو ښائسته ښار دی. دا ستا ښار دی

غوږ سړی ځادر ته دوه غوږونه لرې. دا ستاسو پوزې دي. زه ستا ورور يم.

ږيره لوړ خوښ د هغه ږيره سپينه ده او زما ځادر تور دی. هغه سړی خوښحال دی.

تذکر:

سه ضمير به ترتيب "زه،مونږ، ته،تاسو، هغه،هغوي" که معاني ان "من،ما ، تو،شما ، او،آنها" . که حالت هاي اضافی آن بترتيب "زما ،زمونږ ، ستا ،ستاسو ، د هغه، د هغوي" ميباشند. در جمله هاي زير بايد به اين ضمائر و حالت اضافی آن توجه شود.

نوي ټکي:

زهٔ:من مونږ:ما زما: مال من زمونږ: مال ما تهٔ: تو تاسو: شما ستا: مال تو ستاسو: مال شما هغه:او د هغه: مال او د هغوي: مال آنها سوړ: سرد ړوند: کور زمونږ: مال ما ښار: شهر ږيره:ريش ښائسته: قشنگ غوږ: گوش سړی: ادم لوړ: بلند

مشق

جملې جوړې کړئ

| | | | |
|---|---|---|---|
| هغه | زما | ملګری | دی. |
| هاغه | زمونږ | ورور | ده. |
| دا | ستا | ښار | دي. |
| دغه | ستاسو | ډوډۍ | |
| هلته | د هغه | غوږونه | |
| دلته | د هغوي | کور | |

د لاندې جملو ژباړه وکړئ.

۱. شهر تو قشنگ است. ۲. اين ريش من است. ۳. برادر شما بلند(قد) است. ٤. شهر ما کابل است

٥. گوش من اينجا است. ٦. او آدم کور است. ۷. کابل شهر آنها است. ۸. خانه شما خيلی قشنگ است

# نهم لوست

## ګ ، ڼ

ګڼل غرونه غرونه پاکه هوا لري. دلته زما کور دی. زۀ افغاني ګڼم.
ګټه پاڼه زه يوه پاڼه لرم. دا پاڼه ډېره سپينه ده. دا د کتاب پاڼه نۀ ده.
ناروغه کور تۀ ناروغه يې. تۀ بايد دوا وخورې. زه هم دوا خورم ځکه چې دوا ډېره ګټه لري.
روغ غنم زه ناروغه نه يم. هغه هم روغ دی، هغه دوه کلو غنم لری او زۀ يو کلو.

نوي ټکي:
**ګڼل**: شمارش غرونه: کوهها ګټه: سود/ فائده پاڼه: برگ ناروغه: مريض روغ: تندرست غنم: گندم بايد وخورې: بايد بخورى (خوړل مصدر است) ځکه چې:براي اين که
يادونه:
براى ضمير متکلم " زۀ " (من) نسبت بصورت "يم" (هستم) مى آيد. که در در کندهار بصورت "ياستم" هم مى آيد. براى مفرد مخاطب " تۀ " (تو) نسبت بصورت "يې" (هستي) مى آيد. که در کندهار بصورت "ياستې" مى آيد. و براى غائب " دی" (است) مى آيد. و به همين طريق اند ديگر افعال. مثل "لرم، لرې ، لري" و" کوم، کوې، کوي" و "ګڼم، ګڼې، ګڼي" و...

## مشق

جملې جوړې کړئ

| | | |
|---|---|---|
| زۀ | ناورغه | يم |
| تۀ | روغ | يې |
| هغه | لوړ | دی |
| سړی | ښه | ده |

| | | |
|---|---|---|
| زۀ | کار | لرم/ګڼم/کوم/خورم |
| تۀ | غنم | لرې/ګڼې/کوې/خورې |
| هغه | افغاني | لري/ګڼي/کوي/خوري |
| احمد | ورور | |

جملې جوړې کړئ:
۱. کتاب من سفيد است، ۲. او خيلې مريض است، ۳. قلم من اينجا نيست، ٤. اينجا يک پاسگاه خيلى بزرگ است.
۵. او گندم مى خورد. ۶. برادر من دوست شما است. ۷ خانه من خانه شما است. ۸. او کار مي کند ، من کار نمى کنم

# لسم لوست

## پیژنګلو

| (لومړی کس) | (دویم کس) |
|---|---|
| په خیر راغلې(ښه راغلست) | خدای دې وبخښه. |
| ستا څهٔ نوم دی؟ | زما نوم ګل مخ دی او ستا؟ |
| زما نوم ستار خان دی. | ښه، ستا کور کوم ځای دی؟ |
| زما کور په بغلان کښې دی. | تهٔ څو ورونه او خویندې لرې؟ |
| زهٔ دوه ورونه او یوه خور لرم. | ستا عمر څو کاله دی؟ |
| زهٔ لس کاله عمر لرم. (زهٔ لس کلن یم) | تهٔ څو کلن یې؟ |

تذکر:

الفاظ استفهامیه که در این در آمده، عبارت اند از "څهٔ (چه)، کوم (کدام)، څو (چند) که باید به ان توجه شود. و کلمات "په ، کښې" هر دو برای ظرف می ایند. مثلا: په کور کښې؛ درخانه، په باغ کښې؛ در باغ، په کابل کښې؛ در کابل.

اعداد:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ یو | ۲ دوه | ۳ درې | ٤ څلور | ٥ پینځهٔ |
| ٦ شپږ | ۷ اووهٔ | ۸ اتهٔ | ۹ نهه | ۱۰ لس |
| ۱۱ یوولس | ۱۲ دولس | ۱۳ دیارلس | ۱٤ څوارلس | ۱٥ پینځلس |
| ۱٦ شپاړس | ۱۷ اوولس | ۱۸ اتلس | ۱۹ نورلس | ۲۰ شل |

نوي ټکي:

په خیر: به خیر راغلې: آمدي وبخښه: ببخشد نوم: نام/ اسم کوم: کدام ځای: جا

ورونه: جمعِ ورور(برادر) خویندې: (جمع خور) خواهر کال: سال لس کلن: ده ساله

## مشق

د جملو ژباړه وکړئ

۱. اسم او چیست؟
۲. من هفده ساله هستم.
۳. خانه من اینجا است
٤. او پنج برادر و سه خواهر دارد.
٥. عمر او چند سال است؟
٦. شما چند سال داری؟
۷. او چند تا برادر خواهر دارد؟
۸. اسم من ګل زمان است.
۹. خانه من در قندهار است.
۱۰. من ده افغانی می شمارم.
۱۱. من یک برادر و دو خواهر دارم.
۱۲. خانه او کجا است؟

## یوولسم لوست

### د بدن غړي

سر ښې مخ

غوږونه سترګې ویښته

پوزه خُلهٔ غاښونه

لاسونه ګوتې شونډې

زما لاسونه لنډ دي او پښې مې وږدې دي. ستا د مخ رنګ سپین دی.

زه دوه سترګې او دوه غوږونه لرم. زما د ویښتو رنګ تور دی.

ستا پزه توره ده. زما لاس پینځه ګوتې لري. د هغه غاښونه سپین دی.

د هغه غاښونه سپین دي او ستا سترګې تورې دي. زما شونډې ګلاپي دي.

ذکر: در این درس صفات مختلف اورده شده از قبیل: سپین، تور، سور، لنډ، وږد. که همه این صفات با مفرد و جمع بودن اسم مفرد و جمع مي شود و همینطور با مذکر و مؤنث بودن اسم مذکر و مؤنث مي شود و همینطور مفرد و جمع لذا در ساخت جمله هاي که داراي صفت هستند دقت نمایید.

نوي ټکي:

سر: سر پښې: پاها غوږونه: گوشها سترګې: چشمها پوزه: بینی خُلۀ: دهان لاسونه: دستها ګوتې: انگشتها غاښونه: دندان شونډې:لبها لنډ: کوتاه وږد: دراز سپین: سفید تور: سیاه سور: قرمز ګلابي: رنگ گلاب ویښته:موها ږیره: ریش

مشق

د لاندني جدول په مرسته پینځلس جملې جوړې کړئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| زما | پښه / پښې | سپین / سپینه / سپینې | |
| ستا | لاس / لاسونه | سور / سره / سرې | ده |
| د هغه | سترګه / سترګې | تور / توره / تورې | دی |
| زمونږ | پوزه / پوزې | وږد / وږده / وږدې | دي |
| ستاسو | خیټه / خیټې | لنډ / لنډه / لنډې | |
| د هغوي | شونډه / شونډې | لوي / لویه / لویې | |

# دولسم لوست

## کورنۍ

پلار مور زمونږ ډېره لویه کورنۍ ده. زما مور پلار ډېر مهربان دي.
ورور خور زه دوه ورونه او یوه خور لرم. خور مې په کابل کښې اوسیږي
ترۀ / کاکا ترور زما ترۀ په هرمزګان کښې کار کوي او ماما مې په میدان کښې.
زوی لور زۀ څلور زامن او درې لونه لرم، یوه لور مې درې کلنه ده.
هلک انجلۍ زمونږ په کور کښې یو باغ هم دی. په باغ کښې دوه هلکان او پینځۀ انجلۍ دي.
ماما مامي زما ماما او مامي په بغلان کښې اوسیږي. ماما مې په تاڼه کښې کار کوي.
نیکۀ نیا زما نیا مړه شوې ده او نیکۀ مې ژوندی دی. نیکه مې ناروغه دی.
بابا بې بې مور او پلار مې نصیحت کوي چې باید د بابا عزت وکړم.

نوي ټکي

پلار: پدر مور: مادر ورور: برادر خور: خواهر تره: عمو ترور:خاله (پدری ومادري) زوی: پسر لور: دختر هلک: پسر(Boy) انجلۍ:دختر(Girl) ماما: دایی مامی: زن دایی نیکۀ: پدر بزرگ نیا: مادر بزرگ اوسیږي: زندگی میکنند مړه شوې: مرده شده ژوندی: زنده بایدعزت وکړې: تو باید احترام کنید

تذکر: در این درس د جاهاي از ضمیر متصل متکلم واحد "مې" استفاده شده که در فارسی به صورت "م" در اخر کلمه ملحق می شود مثلا: پدرم؛ پلار مې، مادرم؛ مور مې برادرم: ورور مې این ضمیر برای مخاطب به صورت "دې" بمعنی "ات" می اد مثلا: برادرت؛ ورور دې، مادرت؛ مور دې و برای غائب "یې" می آید مثلا: برادرش؛ ورور یې، پدرش؛ پلار یې.

## مشق

لاندې جملې ترجمه کړئ:

۱. پدر و مادر شما کجا زندگی می کنند؟ ۲. تو باید دایی و زن دایی را احترام کنید.
۳. شما چند تا عمو و خاله دارید؟ ۴. رنگ موهای پسر من سیاه است.
۵. دایی انها چند ساله است؟ ۶. رنگ دستهای دختر من سفید است.
۷. دختران و پسران دوست من اند. ۸. برادر من در کشور شما زندگی می کند.
۹. پدر بزرگ و مادر بزرگ من در قندهار زندگی می کنند. ۱۰. پدر و مادرم و چند عمویم در یک خانه زندگی میکنیم.
۱۱. پدر و مادر ان دختر در شهر بغلان فوت کرده اند. ۱۲. من شش تا دختر و هشت تا پسر دارم.

# دیارلسم لوست

## زمونږ کلی

زمونږ کلی په بغلان کښې دی. زمونږ په کلي کښې شنې ونې دي. دلته لوي لوي غرونه دي او شنهٔ چمنونه هم شته. دا چمنونه شنهٔ دي. په چمن کښې يوه ونه ده. په ونه کښې مچۍ دي. مچۍ چيچل کوي. دلته يو ښايسته باغ دی. دا باغ ډېر لوي دی. په باغ کښې ډېرې لويې ونې دي. په ونو کښې منې دي منې ډېر خوند لري. په باغ کښې يوه مانۍ هم شته. دا مانۍ ژيړ رنګ لري. په مانۍ کښې زمونږ کالي لکه جامې، کتابونه، څپلۍ، چوکۍ، ميزونه، بسترې او نور... دي

يادونه (تذکر):

۱. هر چيزي که ظرف واقع شود و در فارسي براي ان از لفظ "در" استفاده شود در پشتو به اين شکل خواهد بود که ظرف را وسط دو کلمه "په" و "کښې" می نويسند. مثل: په چمن کښې ونه ده، په ونه کښې مچۍ دي، در اينجا "چمن" و "ونه" ظرف واقع شده اند و وسطِ "په" و "کښې" آمده اند. از هر دو باهم بمعناي "در" استفاده می شود. و ګاهي فقط از "کښې" استفاده می شود مثل "کور کښې" ؛ "درخانه" و وقي می خواهيم بګوييم: "در آن" از لفظ "پکښې" استفاده می کنيم مثل، هلته يو کور دی چې پکښې ډېر خلک دي ؛ آنجا يک خانه است که در آن ادمهاي زيادي اند.
۲. لفظ کښې در پشاور کې خوانده می شود و "ښ" ساکت است. ولې در قندهار و بعضی از لحجه ها "کښې" را کشې تلفظ می کنند که در اين صورت "ښ" ساکت نخواهد بود. و همنيطور در مثالهای ديګر هم مثل: "کښيناستل" بمعنای "نشستن" که در پشاور "کيناستل" خوانده می شود و در قندهار "کشيناستل" خوانده می شود.

نوي ټکي:

کلی: روستا /قريه مانۍ: خانه (محل) ژيړ: زرد چمن: چمن/ سبزه ونه: درخت مچۍ:زنبور چيچل: نيش زدن کوي: می کند منې:(جمع منه) سيب خوند: مزه جامې: لباس بسترې: بستر

## مشق

الف: د لاندينيو جملو ژباړه وليکئ:

۱. در باغ يک درخت است. ۲. اين حلوای ګلالۍ است. ۳. خوب کار کردن سود دارد. ٤. انجا دو تا باغ است. ٥. در پشاور لباس زياد هست. ٦. در باغ زنبور است. ۷. اين سيب قرمز است. ۸. زنبور رنګ زرد دارد. ۹. روستای من در قندهار است. ۱۰. نيش زنبور خيلی درد دارد. ۱۱.کتاب من در خانه شما است. ۱۲. دوست من هفده ساله است و اسم او ايوب است. ۱۳. در شهر او سيب زياد است. ١٤. خانواده مجيد در هرات زندگی می کنند. ۱٥. خانه شما کجا است

ب: ده جمله بنویسید که درآن ظرف استفاده شده باشد مثلاً: "په قندهار کښې ډېرې ونې دي."

## څوارلسم لوست

### حمد

| نظم | نثر |
|---|---|
| خداي خالق د ټول جهان دی | خداي د ټول جهان خالق دی |
| خداي روزونکې د انسان دی | خداي د انسان روزونکې دی |
| هر څۀ خداي دي پیدا کړي | هر څۀ خداي پیدا کړي دي |
| ښه او بد یې جلا کړي | ښه او بد یې جلا کړي (دي) |
| دې واکدار دی د همه و | دې د همهٔ واکدار دی |
| کل اختیار دی د همه و | د همهٔ کل اختیا دی |
| شریک نه لري یکتا دی | یکتا دی، شریک نه لري |
| خداي د ټول جهان پاچا دی | خداي د ټول جهان پاچا دی |

**نوي ټکي:**

ټول: همه  روزونکې:تربیت کننده  هرڅه: هرچیز  جلا: جدا  دې:این  همه و:همه  واکدار: صاحب اختیار
پاچا: بادشاه

### مشق

الف: دا شعر زباني زده کړئ.

د جهان دولس امام دي  په حدیث کښې نام په نام دي
یو علی دویم حسن دی  بل حسېن پاکیزه تن دی
چهارم زېن العابدین دی  بل باقر ستنه د دین دی
بل جعفر ورپسې هم دی  بل امام موسی کاظم دی
بل امام علی رضا دی  محمد تقی بل بیا دی
بل امام علی نقی دی  بل حسن عسکری دی
بل امام، امام مهدی دی  چې د دُرَسْتُ جهان هادی دی
د بی بی زهرا اولاد دی  پشت په پشت دا هسې یاد دی
پاک سنی هغه آدم دی  چې د آل په عشق محکم دی

**الفاظ جدید:** ستنه: ستون  ورپسې: بعد از او  بل: دیگر  درست: همه  هسې: همینطور

ب: د دې حمد مطلب په خپلو ټکو کښې ولیکئ یا د دولسو امامانو په هکله یوه انشاء ولیکئ. مثلاً: "په جهان کښې دولس امامان دي چې په حدیث کښې ذکر دي. دا ټول د بی بی فاطمه زهرا اولاد دي.

## پینځلسم لوست

### ښوونځی

زمونږ ښوونځی په کابل ښار کښې دی. ښوونځی د زده کړې ځاي دی. مونږ هره ورځ په خپل وخت ښوونځي ته ځو، هلته سبق زده کوو. زمونږ په ښوونځي کښې ښایسته شین چمن دی او لویې لویې ونې دي د چمن په هر اړخ کښې سره ګلان

دي. مونږ ګلان او ښاخونه نهٔ ماتوو. زمونږ په ښوونځي کښې د لوبو لپاره دوه ميدانونه دي يو ميدان د واليبال لپاره او بل د فوټبال لپاره دی. زده کوونکي د تفريح په وخت کښې په دې ميدانونو کښې لوبې کوي. مونږ له خپلو همزولو سره لوبې کوو. يو له بل سره جنګ جګړه نهٔ کوو. د ښوونکي او د مور پلار خبره منو. او د هغوي درناوې کوو. ښوونکې هم مونږ سره مينه کوي. (طبق درس هجدهم، کلاس چهارم کتاب پشتو افغانستان)

## نوي ټکي:

ښوونځی: مدرسه　زده کړه: ياد گرفتن　ځاي: جا　هره ورځ: هر روز　وخت: وقت　اړخ: طرف

ښاخونه: شاخها　ماتول: شکستن　لوبې: جمع لوبه، بازي　لپاره: براي　همزولې: همزلف/ هم عمر　مينه: محبت　درناوې : احترام　منل: قبول کردن　جګړه: جنګ

## ديالوګ:

زلمی: ګل زمانه ستاسو ښوونځی کوم ځاي دی؟　ګل زمان: زمونږ ښوونځې په کابل ښار کښې دی.

زلمی: ستاسو ښونځی د لوبو ميدان لري؟　ګل زمان: هو، زمونږ ښوونځی دوه د لوبو ميدانونه لري.

زلمی: تاسو د تفريح په وخت کښې څه کوئ؟　ګل زمان: مونږ د تفريح په وخت کښې يو بل سره لوبې کوو.

## اصلي او مستعار توري

در زبان پشتو بعضي از حروف اصلي اند و بعضي مستعار( ينعی حروفی که از زبان ديگر مثل عربی و غيره گرفته شده اند) در پشتو اين حروف بجاي مخارج اصلی شان از نزديکترين مخرج آن تلفظ می شوند چون اين حروف اصلي پشتو نيستند ، البته برای قران و کتابهای عربی مخارج ان اموخته می شود. و کسانی که مخرج اصلی حروف مستعار را ياد گرفته اند ان را از مخرج اصلی ان ادا می کنند.حروف مستعار با مخارج نزديک عبارت اند از:

| مستعار | اصلي | مستعار | اصلي | مستعار | اصلي | مستعار | اصلي | مستعار | اصلي |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ث | س | ح | خ | ص | س | ض | ز | ط | ت |
| ظ | ز | ع | ا | ذ | ز | ف | پ | ق | ک |

## مشق

الف: د نويو ټکو څخه لس جملې جوړې کړئ. لکه: د ونې ښاخونه وړده ده. (شاخهاي درخت دراز اند)

ب: د لاندينو جملو ژباړه وکړئ.

١. شما کجا زندگی می کنيد؟　٦. مدرسه شما قشنګ است　11. مدرسه ما دوتا ميدان بازي دارد

٢. تو بايد با پدر و مادر محبت کنيد.　٧. ما سخن استاد را قبول می کنيم　12. ما در وقت تفريح طالبي مي خوريم

٣. خدا به تمام جهان روزی می دهد.　٨. در روستاي ما هر طرف درختهای سبز هستند.

٤. پدر و مادر با ما محبت می کنند.　٩. عموی من در مدرسه استاد است.

٥. شاخهای درختهای سيب سياه اند.　١٠. دستهای سپيد او کوتاه اند.

ج: د خپل ښوونځي په هکله پينځه جملې انشاء وليکئ.

د: جملې بشپړې (کاملې)کړئ.

1. زمونږ ښوونځی ..........لري.　2. دا ..........دوه ميدانونه هم لري.　3. هغوي په تفريح کښې ..........کوي.

4. ښوونځی د ..........ځاي دی.　5. ښوونکی مونږ سره .......... لري.　6. مونږ بايد د .......... احترام وکړو.

7. زما ترور په بغلان کښې..........　8. امام موسی کاظم .......... امام دی.　9. ستاسو ښار.............. دی.

# شپاړسم لوست

## کور

هر څوک خپل کور سره مینه لري. مونږ هم خپل کور سره ډېره مینه لرو. خپل کور پاک ساتو ځکه چې د کور پاک ساتل ښه کار دی. د کور په کارونه کښې یو له بل سره مرسته کوو. زمونږ په کور کښې ټول پینځه کسان دي. پلار، مور، دوه ورونه او یوه خور. زه سهار خپل ورور سره ښونځي ته ځم. زما ورور له ما سره مرسته کوي. پلار مې سهار کار ته ځي او ماښام کور ته راځي. مور مې د کور کارونه کوي او زمونږ لپاره ډوډۍ پخوي. د کور ځینې کارونه زما ورور کوي لکه سبزي راوړل، اوبه راوړل او نور داسې کارونه.

### نوي ټکي:

کور: خانه　هر څوک: هر کس　ساتل: نگهداشتن　ځکه: زیرا/ چون　یو له بل سره: با یکدیگر
مرسته: کمک　کسان: نفر/ افراد　سهار: صبح　ځي:میرود　راځي: میاید　ماښام: وقت مغرب
ځینې: بعضی　لکه: مثل　راوړل: اوردن　اوبهٔ: آب　نور: دیگر　هسې، داسې: اینطور یا این چنین

## مشق

۱. له لاندینیو ټکو څخه جملې جوړې کړئ

راوړل، ماښام، کسان، مرسته، هر څوک، ځکه، یو له بل سره، ډوډۍ، همزولې، نور، اوبه، پخوی

۲. فعلونه صرف کړئ، راوړل، پخول، کول، خوړل، لیکل، تلل

| مصدر | فعل حال مفرد متکلم | جمع متکلم | مفرد مخاطب | جمع مخاطب | مفرد | | جمع | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | غایب | غایبه | غایب | غایبه |
| راوړل | راوړم | راوړو | راوړې | راوړئ | راوړي | راوړي | راوړي | راوړي |
| پخول | | | | | | | | |
| کول | | | | | | | | |
| خوړل | | | | | | | | |
| لیکل | | | | | | | | |
| تلل | | | | | | | | |

# اوولسم لوست

## بازار

اخستوونکې: ګرانه وروره! السلام علیکم
خرڅوونکې: و علیکم السلام، په خیر راغلی.
اخستوونکې: وروره غنم کیلو په څو دي؟
خرڅوونکې: یو کیلو په شل روپې دي خو که ډېر اخلې تا ته به یې ارزان درکړم.

اخستونکې: پينځه کيلو غنم راکه، مالګه او چيني او غوړي هم لرې؟
خرڅوونکې: هو! مالګه او چيني شته خو غوړي ختم شوي دي.
اخستوونکې: خير دی لږه مالګه راکړه او دوه کيلو چيني راکړه، خو چيني په څو ده.
خرڅوونکې: چيني خو ګرانه ده، په ۴۰ روپې کيلو ده، که لږه اخلې که ډېره.
اخستوونکې: غوړي چېرته ملاويږي؟
خرڅوونکې: د بازار اخري سر ته لاړ شه. ښي اړخ ته يو دوکان دی چې ګل خان نوم يې دی هغه سره غوړي شته.
اخستونکې: ښه وروره! ټولې څو روپې شوې.
خرڅوونکې: ټولې يو سل لس روپې کيږي خو ته سل روپې راکړه.
اخستونکې: ډېره مننه. د خداي په امان.

نوي ټکي:

اخستونکې: خريدار خرڅوونکې: فروشنده ګران: قيمتی غنم: گندم که: اگر اخلې: می خريد مالګه: نمک چيني: شکر راکړه: بدهيد لږ/لږه: کم غوړي: روغن چېرته: کجا ملاويږي: يافت می شود لاړ شه: بروید ښي: راست مننه: ممنون

## تذکر

سه کلمهٔ "ور، در ، را" ضمائر متصل اند که در اول فعل براي سه نسبت " او، تو، من" در مثل: ورپسې؛ پشت سراو، راپسې؛ پشت سر من، در پسې؛ پشت سر تو. ورته؛به او، درته؛به تو ، راته؛ به من، ورسره؛همراه او، درسره؛ همراه تو راسره؛ همراه من .... و به همين ترتيب در اول افعال ديگر می آيد.

## مشق

الف: يو کس خرڅوونکې شئ او يو کس اخستوونکې او دا لوست ولولوئ.
ب: جملې جوړې کړئ

١. تو شکر داري؟
٢. من به او صدقه دادم و او به من دعا کرد.
٣. بعضی از مردم روغن خيلی کم می خورند.
٤. در باغ ملالۍ پنج تا گل قرمز وجود دارد.
٥. اگر زياد می خواهی به تو ارزان می دهم.
٦. من خريدار روغن هستم.
٧. در اخر بازار طرف راست خانه ما است.
٨. در کار خانه بايد با يکديگر کمک کنيم.
٩. مدرسه جاي درس است.
١٠. خدا پرورش کننده همه مردم است.

# اتلسم لوست

## ځمکه

زما کور په بغلان کښې دی. هلته ډېر باغونه او ځمکې دي. خلک په باغونو کښې بيلا بيلې ميوې کرې. او په ځمکو کښې بيلا بيل کشتونه کرې. بزګران سهار وختي له کوره راوځي. خپلو ځمکو ته ځي او په هغې کښې کار کوي. په پسرلي کښې هوا ښه وي خو په اوړي کښې ډېره ګرمي وي. کرونګر په ډېر محنت او کوښښ سره کار کوي فصلونو ته اوبه ورکوي او د هغې خيال ساتي. سهار غرمه او ماښام په فصلونو کښې ګرځي. او د هغې نه بې کاره بوټي اوباسي چې ښه فصل وشي. کرونګر له ونو ميوه ټولوي او په بازار کښې يې خرڅوي. او په دې طريقه ژوند تيروي. او د خداي پاک شکر کوي.

## نوي ټکي:

ځکمه: زمین خلک: مردم بیلابیل: مختلف کښت: کشت بزګران: کشاورزان سهار: صبح وختي: زود راوځي: بیرون می اید ځي: می رود پسرلی: بهار اوړی: ګرما ساتي: نګهداري می کند غرمه: ظهر ګرځي: قدم می زند بوټي: بوته ها اوباسي: بیرون می کند ټولوي: جمع مي کند ژوند: زندګی تیروي:میګزارد

## تذکر:

در پشتو الفاظ کمکي که تا اینجا ذکر شده و در جاهای مختلف معانی مختلف داده عبارت اند از "په، ته، سره، یې، له" که باید با خواندن متن پشتو موارد استعمال ان واضح مي شود ولی وقتي بعد از "له" اسم یا فعل بیاید در حالت ارتباطی است و شکل ان عوض می شود مثلا: له کوره راغلم. له کابله راغلم و...

| | اصلي حالت | د اضافي حالت | له .... څخه/ځنې/نه (ارتباطي حالت) | کښې (ظرفي حالت) | فاعلي (متعدي حالت) | پر/په (مفعولي حالت) | ته (مفعولي حالت) | سره (ارتباطي حالت) |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مفرد مذکر | سړی | د سړي | له سړي څخه/ځنې/نه | سړي کښې | سړي وخوړه | په سړي | سړي ته | سړي سره |
| | هغه | د هغهٔ | له هغهٔ څخه/ځنې/نه | هغهٔ کښې | هغهٔ وخوړه | په هغهٔ | هغهٔ ته | هغهٔ سره |
| | ښوونکي | دښوونکي | لهښوونکي څخه/ځنې/نه | ښوونکي کښې | ښوونکي وخوړه | پهښوونکي | ښوونکي ته | ښوونکي سره |
| جمع مذکر | سړي | د سړیو | له سړیو څخه/ځنې/نه | سړیو کښې | سړیو وخوړه | په سړیو | سړیو ته | سړیو سره |
| | غرونه | د غرونو | له غرونو څخه/ځنې/نه | غرونو کښې | غرونو وخوړه | په غرونو | غرونو ته | غرونو سره |
| | هغوي | د هغو | له هغو څخه/ځنې/نه | هغو کښې | هغو وخوړه | په هغو | هغو ته | هغو سره |
| مفرد مونث | ښځه | د ښځې | له ښځې څخه/ځنې/نه | ښځې کښې | ښځې وخوړه | په ښځې | ښځې ته | ښځې سره |
| | ځمکه | د ځمکې | له ځمکې څخه/ځنې/نه | ځمکې کښې | ځمکې وخوړه | په ځمکې | ځمکې ته | ځمکې سره |
| | هغه | د هغې | له هغې څخه/ځنې/نه | هغې کښې | هغې وخوړه | په هغې | هغې ته | هغې سره |
| جمع مونث | ښځې | د ښځیو | له ښځیو څخه/ځنې/نه | ښځیو کښې | ښځیو وخوړه | په ښځیو | ښځیو ته | ښځیو سره |
| | ونې | د ونو | له ونو څخه/ځنې/نه | ونو کښې | ونو وخوړه | په ونو | ونو ته | ونو سره |
| | هغوي | د هغوي | له هغوي څخه/ځنې/نه | هغوي کښې | هغوي وخوړه | په هغوي | هغوي ته | هغوي سره |

الف: د لاندې جملو ژباړه وکړئ

۱. ما صبح و شام در اینجا هستیم.
۲. در روستای ما زمینها و باغهای زیادي است.
۳. هوای روستا خوب است.
٤. در جلال اباد در ګرما ګرمای زیادی است.
٥. کشاورز در اخر سال میوه جمع می کند.
٦. ظهر شما چه کار می کنی؟
۷. او سیبهای خود را می فروشد.
۸. من لباس خود را تمیز نګه میدارم.
۹. در بهار ګلهای مختلف پیدا می شود.
۱۰ . زندګی ما خوب می ګزرد.

# نولسم لوست

## پیشو او موږک

یوه ورځ پیشو په لاره کښې د یوهٔ موږک سره ملګرې شوه، دواړه یوهٔ کلي ته تلل. پیشو موږک ته وویل: " تهٔ مخکښې ځه، زهٔ به درپسې درځم". موږک ورته وویل: " تهٔ مشره یې او زهٔ کشر یم، زهٔ ستا نه مخکښې نهٔ ځم". پیشو بیا موږک ته وویل: "نه، نه په کار دا دي چې تهٔ مخکښې ځه او زهٔ به درپسې درځم". موږک د پیشو خبره ومنله، مخکښې شو، پیشو ورپسې شوه او په لاره تلل. موږک پیشو ته وویل: څوک چې کوم ځاي ته سره ملګري ځي نو په لاره کښې یو له بل سره خبرې کوي. ځکه چې هم یې ساعت تېر شي او هم پرې لاره لنډه شي، نو زهٔ او تهٔ به هم په لاره ځو او هم به یو له بل سره

خبرې کوو. پيشو ورته وويل: "ډېر ښه وايې، ته خبرې کوه او زه به درته ښه ښه کوم چې ستا وار تېر شي نو بيا به زه خبرې کوم او ته به راته ښه ښه کوې.

لومړۍ موږک په خبرو پيل وکړ، څه لاره چې يې ووهله، موږک په خبرو کښې تود شو، نو پيشو پرې ورټوپ کړ، او ويې خوړ.

### نوي ټکي:

پيشو: گربه موږک: موش لاره: راه سره: با/باهم دواړه: هردو وويل: گفت تلل: ميرفتند مخکښې: جلو ځه: برو درپسې: پشت سر شما مشر: بزگسال کشر: کوچک/کم عمر بيا: دوباره په کار دي: بايد خبره: سخن ومنله: قبول کرد يو له بل سره: با يکديگر ځکه: چون تېر شي: ميگزرد وار: نوبت پيل وکړ: شروع کرد څه: کمی ووهله: زدند/ طی کردند تود: گرم ټوپ کړ: پريد

## مشق

۱. له تېر شوي سبقونو څخه ټول هغه ټکي چې پکښې ور، در او را استعماليدې شي وليکئ او جملې ترې جوړې کړئ.

۲. د لاندې يو ټکو په مرستې لس جملې جوړې کړئ.

لاره ، سره ، دواړه ، مشر ، خبره ، پيل وکړ ، ځکه ، يو له بل سره، وار، په کار دي

۳. د لاندنيو پوښتنو ځوابونه وليکئ.

1: پيشو او موږک چيرته تلل؟ 2: پيشو څه وويل؟ 3. موږک څه وويل؟ 4: په پاي کې پيشو څه وکړل؟

# شلم لوست

## کوښښ/کوشش

هر څوک بايد هڅه او کوښښ وکړي ځکه چې بې هڅې ژوند گټه نه لري. زه پوهيږم چې تاسو په خپلو درسونو کښې کوښښ او هلې ځلې کړي دي چې دويم ټولگي ته بريالي شوي ياست، پروسږکال چې اکرم په خپلو درسونو کښې کوښښ کاوه نو لومړۍ درجه بريالې شو او اسلم چې زيار ونه ويست (هڅه ونه کړه) ناکام شو او ډېر خفه ؤ، نو تاسو بايد په خپلو درسونو کښې کوښښ وکړئ او زيار وباسئ چې ناکام نه شئ.

بې زحمتــه عزت نشتــه زما وروره
که عزت غواړې زحمت درلره بويه

### نوي ټکي:

هڅه: هلې ځلې/کوښښ/کوشش وکړي: بکند ژوند: زندگی پوهيږم: می فهمم خپل درسونه: درسهای خود ټولگی: کلاس/جماعت بريالې: کامياب پروسږکال: پارسال زيار باستل: کوشش کردن خفه: ناخوش غواړې: می خواهی بويه: لازم

### تذکر

۱. نوم درې حالتونه لري

| | | اصلي حالت | ارتباطي او فاعلي حالت | ندايي حالت |
|---|---|---|---|---|
| مذکر | مفرد | سړی | د سړي کور/ سړي ډوډۍ وخوړه | اي سړيه |
| | جمع | سړي | د سړيو کور/ سړيو ډوډۍ وخوړه | اي سړيو |
| مونث | مفرد | ښځه | د ښځې خاوند/ ښځې ډوډۍ وخوړه | اي ښځې |
| | جمع | ښځې | د ښځيو زامن/ ښځيو ډوډۍ وخوړه | اي ښځيو |

۲. در حالت ندايي اگر در اخر يک اسم "ا، و ، ي" بيايد در چنين حالت در صورت ندايي تغيير پيدا نمي كند مثل: ذكريا، محمدي، خارو و... مثل: اي محمدي، اي خارو، اي ذكريا و مثالهاي ديگر ولې بعضي از اسماء مؤنث هم در حالت ندا تغيير پيدا نمي كند مثل: زينب، عترت، نصرت، عشرت.

۳. د حالت ارتباطي هم اسم تبديل مى كند چنانچه قبلاً تفصيلا ذكر شد.

## مشق

الف: د لاندنيو پوښتنو ځوابونه وليكئ.

۱. مونږ ولې بايد هڅه او كوښښ وكړو؟ ۲. اكرم څۀ وكړل؟ ۳. اسلم ولې خفه ؤ؟ ٤. مونږ ته څۀ په كار دي؟

ب: د لاندنيو جملو ژباړه وكړئ:

۱. در خانه ان مردها يک درخت بزرگي است. ۲. در شهر قم زندگى سود زيادى دارد. ۳. شما بايد در درسهاى خود زياد كوشش كنيد تا ناكام نه شويد. ٤. من در كلاس دوم هستم. ٥.فرزندان خانمها اينجا هستند. ٦. شوهر ان زن فوت كرده است. ۷. اى مرد! شما كجا زندگى مى كنيد؟ ۸. او و پدرش به شهر پشاور مى رفتند. ۹. بايد با يكديگر به زبان پشتو صحبت كنيد. ۱۰. در دست ان زن چيست؟

# پښـتو

## دويمه برخه

# د فارسي ژبو لپاره

## لیکوال: محمدرحیم درانی

## لومړی لوست

### حمد

| | |
|---|---|
| زۀ بنده یم تۀ مولا | تۀ بادشاه یې زۀ ګدا |
| تۀ خالق یې زۀ مخلوق یم | تۀ اعلی یې زۀ ادنی |
| بادشاهان کۀ امیران دي | ستا د در دي فقراء |
| څوک لائق د ثنا نشته | تۀ لائق یې د ثنا |
| تۀ مې مل شې اې خالقه | ډېر خراب دی حال زما |

**نوي ټکي:**

یې: هستي/ را　　کۀ: اګر/ اګرچه　　څوک: کسی/ کی مل: همراه / ملګرې

**ګرامر:**

**د کلمې ډولونه:**

۱. نوم: (اسم) د یو ځاي یا د یو شخص څرګندونه کوي.
۲. ضمیر: هغه کلمه چې د نوم ځاي ونیسي. لکه: زۀ، تۀ، هغه
۳. صفت: هغه کلمه چې د یو نوم حالت او څرنګوالې بیانوي. لکه: ښه سړی، تور قلم
٤. فعل: هغه کلمه چې د زمانې په دخالت سره یوه مستقله معنی ولري.
٥. قیدونه: هغه کلمه چې په نوم، فعل، صفت یا ضمیر باندې یو قید ورزیاتوي او معنی یې مقید کوي لکه ډېر هوښیار.
٦. ادات: هغه کلمه چې په مستقله توګه معنی نلري بلکه له فعلونو او نومونو څخه د یوې معنا د افاده کولو لپاره استعمالیږي. لکه: "له" " تۀ" په دې مثال کښې " له کوره راغلم، کور ته ځم".

### مشق

۱. د دې شعر نثر ولیکئ.
۲. له دې حمد څخه نوم، فعل، ضمیر، صفت، قید او ادات ولیکئ.

# دویم لوست

## ښوونکې

ښوونکې زمونږ لارښوونکې دی. هغه موږ ته د لیک لوست ښوونه کوي. ښوونکې مونږ ته سمه لاره ښیي. ښوونکې په ډېره مینه زمونږ کورني کارونه سموي. که مور او پلار زمونږ بدن روزي ښوونکې مونږ ته پوهه راښیي. له دې امله مونږ د ښوونکي درناوې کوو او د مور او پلار په څیر یې د درناوي وړ ګڼو.

**نوي ټکي:**

ښوونکې: استاد لارښونکې: راهنما لیک: نوشتن/ نوشته شده لوست:درس/خوانده شده سمه: درست ښیي: نشان می دهد مینه: محبت روزي: تربیت می کنند پوهه: فهم له دې امله: به سبب این درناوې: عزت څېر: مثل وړ: قابل ګڼو: میشماریم /میدانیم/ حساب می کنیم.

**ګرائمر:**

**د جوړخت او پاي له مخې د پښتو د مصدرونو ډولونه:**

١. لام والا مصدرونه ٢. ول والا مصدرونه ٣. یدل والا وصدرونه ٤. کول والا مصدرونه

٥. کیدل والا مصدرونه (چې هر یو مصدر په دوه ډوله دی. دوه توکیز، یو توکیز چې هر یو په ترتیب سره بیانیږي)

(دې خبرې ته دې ډېر فکر وشي چې کیدل والا مصدرونه مجهول لپاره او لام والا، ول والا او کول مصدرونه د معلوم لپاره راځي: لکه: کار کیدل (کار شدن) کار کول (کار کردن) او له نورو مصدرونو څخه د مجهول جوړیدو خپله لاره ده چې وړاندې بیانیګي انشاءالله.)

**١. لام والا مصدرونه:** هغه دې چې یوازې په "ل" پاي ته رسیدلي وي، یعنې د مصدر نښه پکښې "ل" وي، دا مصدرونه په دوه ډوله دي:

الف: دوه توکیز: هغه دې چې له دوه توکیو څخه جوړ وي او تو کي یې د جلا کیدو وړ نه وي.

ب: غیر دوه توکیز هغه دي چې په اصل کښې مصدر ګڼل شوې وي او د تجزیې وړ نه وي.

| شمېره | الف.دوه توکیز | | | ب: غیر دوه توکیز | |
|---|---|---|---|---|---|
| ١ | پورې وتل | پورې + وتل | آن طرف رفتن | وهل | زدن |
| ٢ | پرې وتل | پرې + وتل | زمین خوردن/افتادن | تلل | رفتن |
| ٣ | ځملاستل | ځم + لاستل | خوابیدن/دراز کشیدن | پالل | نګهداری کردن |
| ٤ | بوتلل | بو + تلل | بُردن برای شي که خودر راه می رود. | خوړل | خوردن |
| ٥ | پریښودل | پرې + ښودل | رها کردن | غوښتل | خواستن |
| ٦ | پرانیستل | پرا + نیستل | باز کردن | موندل | یافتن |

۲. **ول والا مصدرونه**: هغه دي چې يوازې په "ول" پاي ته رسيدلي وي، يعنې د مصدر نښه پکښې "ول" وي، دا مصدرونه په دوه ډوله دي:
الف: هغه چې لومړنې توکې يو بې معنا لفظ وي لکه: ګرځول، چې يوازې "کرځ" څه معنا نه لري.
ب: هغه چې لومړنې توکې يو معنا لرونکې لفظ وي لکه: تورول، چې تور يوازې معنا لري.

| شمېره | الف | | ب | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | تښتول | بزور بردن/ فراری دادن | سپينول | پوست کندن |
| ۲ | غورځول | انداختن | مړَوَلْ | کُشتن |
| ۳ | ګرځول | گرداندن | جنګول | جنگاندن |
| ٤ | خندول | خنداندن | ماتول | شکستن |
| ٥ | ژړول | به گريه در اوردن | زغلول | دواندن |

## مشق

۱. د لاندې ګراف په مرستې سره لس جملې جوړې کړئ.

| نوم / ضمير | صفت/ عدد | نوم | فعل |
|---|---|---|---|
| زۀ | شين/ شنه/ شنې | خټکی/ خټکي | لري |
| تۀ | يو/ يوه | خور/ خويندې | لرم |
| هغه | تور/ توره/ تورې | ورور/ ورونړه | لرئ |
| مونږ | مشر/مشره/مشرې/مشران | موږک / موږکان | لري |
| تاسو | کشر/ کشره/ کشرې/کشران | ترۀ / ترونه | لرو |
| هغوي | پينځۀ | پيشو/ پيشوګانې | لرې |

۲. د ښوونکي په حقله شپږ جلمې وليکئ.

# دريم لوست

## مسافر

اسلم: په خير راغلې. کريم: خداي دې وبخښه.
اسلم: ته څوک يې؟ کريم: زما نوم کريم ګل دی.
اسلم: دلته څه کوې؟ کريم: دلته کار لرم، دا راته وايه چې دلته مسافرخانه شته؟
اسلم: هو! دلته ډېرې سراې شته دي؟ خو ته کومې سراې ته تلل غواړې؟
کريم: داسې سراې راوښيه چې ښه ، ارزانه او نږدې وي.
اسلم: چې لږ مخکښې لاړ شې يو چوک دی په چوک کښې ښې اړخ ته يو سراې شته.
کريم: د سراې نوم راوښيه چې غلطه راځخه نه شي.
اسلم: راځه! زۀ هم هغې اړخ ته ځم تاسو ته به سراې هم وښيم او خپل کار به هم وکړم.

(هغوي په لاره تلل او يو له بل سره يې خبرې کولې)

کريم: ډېره مننه، ستا نوم څۀ دی او څۀ کار کوې؟

اسلم: زما نوم اسلم خان دی او د ماشومانو په ښوونځي کښې ښوونکې يم.

کريم: دا خو ډېره ښه خبره ده خداې پاک دې برياليې لره.

اسلم: ته له کوم ځای څخه راغلې يې؟

کريم: زه له کابله راغلی يم، کور مې په کندهار کښې دی خو په کابل کښې کار کوم.

اسلم: راځه وروره! نن ما سره شپه تېره کړه سبا به خپل کار وکړې.

کريم: نه وروره! په سر دې خير وي

اسلم: ښه کريمه وروره! دغه سراې ده، زۀ ځم، په مخه دې ښه.

کريم: د خداې په امان. (خداې دې مل وي)

**نوي ټکي:**

دې: تو (ضمير متصل) / حرف ربطی نږدې: نزديک لږ: کمی څخه: از/ با ښې: راست اړخ: طرف مننه: تشکر ښوونځي: مدرسه لره: (مصدر ان لرل: داشتن) دارد راځه: بيا نن: امروز ما سره: بامن شپه: شب سبا: فردا مخه: پيش روی تو

**ګرائمر:**

۳. **يدل والا مصدرونه:** هغه دي چې يوازې په "يدل" پاي ته رسيدلي وي، يعنې د مصدر نښه پکښې "يدل" وي، دا مصدرونه په دوه ډوله دي:

الف: هغه چې لومړني توکې يو بې معنا لفظ وي لکه: ګرځيدل (قدم زدن/ گشتن)

ب: هغه چې لومړني توکي يو معنا لروونکې لفظ وي (نوم يا صفت وي) لکه توريدل، جنګيدل.

| شمېره | الف | | ب | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | تښتيدل | فرار کردن | سپينيدل | سپين + يدل | پوست کنده شدن |
| ۲ | غورځيدل | افتادن | مړَيدلْ | مړ + يدل | کشته شدن |
| ۳ | خنديدل | خنديدن | جنګيدل | جنګ + يدل | جنگيدن |
| ٤ | ګرځيدل | گشتن/ قدم زدن | ماتيدل | مات + يدل | شکسته شدن |
| ٥ | ژړيدل | گريه کردن | زغليدل | زغل + يدل | دويدن/ فرادکردن |

مشق

۱. لاندني ټکي په جملو کښې استعمال کړئ

مننه، ماسره، ورځ، پينځه، لږ، نن، سبا، اړخ، مينه ، مخه .

۲. د لاندنيو پوښتنو ځوابونه وليکئ.

کريم له کوم ځاي څخه راغلې ؤ.؟ اسلم څه کار کاوه؟ سراې کوم ځاي کښې وه؟

## څلورم لوست

## د اوونۍ ورځې او وختونه

يوه اوونۍ اووه ورځې لري. نن د خالي ورځ ده، سبا اتوار دی، بل سبا به د ګل ورځ وي او لابله ورځ به نهې وي. پرون جمعه وه بل پرون زيارت ؤ او د هغې نه مخکښې د شورو ورځ وه. د زيارت په ورځ خلک زيارتونو ته ځي د جمعې په ورځ د ښونځي چټي (تعطيل) وي نو د ځان صفايي کوي او د جمعې مانځه ته ځي. د خالي په ورځ ښونځي بيا خلاصيږي د اتبار په ورځ په انګريزي هيوادونو کښې چټي وي. د شورو په ورځ نوي کار شورو کول ښه دي. نن مونږ سبق زده کوو او سبا به د دې سبق پوښتنو ته ځوابونه ورکوو ځکه چې زمونږ ښوونکې وايي: "د نن کار سبا ته مۀ پريږدئ". د ګل په ورځ به خپل سبق لولو ځکه چې د نهې په ورځ زمونږ ازموينه پيل کيږي. خداې پاک دې وکړي چې ټول پکښې بريالي شو.

| خالي | اتبار | ګل | نهې | شورو | زيارت | جمعه |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شنبه | يکشنبه | دوشنبه | سه شنبه | چهارشنبه | پنجشنبه | جمعه |

| بل پرون | پرون | نن | سبا | بل سبا | لا بله ورځ |
|---|---|---|---|---|---|
| پريروز | ديروز | امروز | فردا | پس فردا | فرداي پس فردا |

اوونۍ: هفته هيواد: کشور چټي: **تعطيل** ازموينه: امتحان **خلک**: مردم زيارتونه: زيارات لولو: مي خوانيم/ مطالعه مي کنيم ورکول: به انها دادن ټول: همه پريږدول: رها کردن

## ګرائمر:

٤. **کول والا مصدرونه**: هغه دي چې په پاي کښې يې د کول په يوځاي کولو سره يوه بله کلمه جوړه شوې وي، دا مصدرونه په دوه ډوله دي:

الف: هغه دی چې لومړنې جز يې د مفهوم له مخې له کول سره يو او د فعل غوندې وګرځي او جلا مفعول وغواړي. لکه: پورته + کول (پورته کول) بلند کردن. لکه سر پورته کول.

ب: هغه دي چې د معنې له مخې له کول سره يو نه شي او خپله د کول مفعول واقع شي. لکه کرکول، غوبل کول. چې غوبل د کول مفعول دی. او اکثرا لومړی توګې يې يو استعماليدونکې کلمه وي.

| شمېره | الف | | ب | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | پخلا کول | راضي کردن | کر کول | کر+ کول | کاشتن |
| ۲ | پرې کول | پاره کردن | وابښه کول | وابښه+ کول | سبزه چيدن/کردن |
| ۳ | پورې کول | ان ور بردن | زياتې کول | زياتې + کول | زيادتي کردن |
| ٤ | پورته کول | بالا بردن | ظلم کول | ظلم + کول | ظلم کردن |

## مشق

د لاندنيو جملو ژباړه وکړئ.

۱. من او را راضی می کنم.۲. او صندلی را بالا می برد.۳. او بر شما ظلم می کند.٤. کشور من افغانستان کوههای زيادی دارد.٥. دنيا جای امتحان است.٦. کار امروز به فردا نگذاريد.٧. شنبه امتحان ما خواهد بود.٨. پس فردا برادر و دايي من از هرات می ايند. ۹. تو از کدام کشور امده ای.

ج: لانديني مصدرونه د جدول په مرستې سره صرف کړئ.

| شمېره | ضمیرونه | مصدرونه | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | پورته کوم | خاندوم | جنګوم | ماتوم |
| ۱ | زۀ | | | | |
| ۲ | مونږ | | | | |
| ۳ | تۀ | | | | |
| ٤ | تاسو | | | | |
| ٥ | هغه | | | | |
| ٦ | هغوي | | | | |

ب: له لاندنیو ټکو څخه جملې جوړې کړئ.
خالي، اتبار، ګل، نهې، شورو، زیارت، جمعه، نن، سبا، پرون، پس فردا، پری روز.

# پینځم لوست

## میاشتې

په یو کال کښې دولس میاشتې وي. لومړۍ میاشت د امامانو میاشت ده. په دې میاشتې کښې د پیغمبر(ص) ګران نمسي امام حسین(ع) په کربلا کښې شهید شوې ؤ. ورپسې د سپرې میاشت ده چې ورته د چورې میاشت هم وایي ځکه چې خلک په دې میاشتې کښې چوري جوړوي او خوري. بیا ورپسې په ترتیب سره لومړۍ خور، دویمه خور، دریمه خور او څلورمه خور دي. بیا ورپسې زبرګه میاشت ده چې ورته د خداي میاشت هم ویل کیږي ځکه چې پکښې خلک ډېر عبادتونه کوي. بیا ورپسې د برات میاشت ده چې دې ته شوقدر او د پینځلسمې میاشت هم ویل کیږي. بیا ورپسې د روژې میاشت ده چې له روژې وروسته د وړوکي اختر میاشت ده او بیا ورپسې میانه ده، یعنې د دوو اخترونو تر مینځ دا میاشت میانه ده. او په اخر کښې د لوي اختر میاشته راځي.

**نوي ټکي:**
میاشتې: ماهها(جمع میاشته)  نمسې: نواده  چوري: یک چیز خودني که از ارد درست می شود.
ویل کیږي: گفته می شود.  روژه: روزه  وړوکي: کوچک  اختر: عید  مینځ: وسط/ درمیان

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| امامان/حسنیان | سپره | لومړۍ خور | دویمه خور | دریمه خور | څلورمه خور |
| محرم | صفر | ربیع الاول | ربیع الثانی | جمادی الاول | جمادیالثانی |
| زبرګه/بزرګه | برات/شوقدر | روژه | وړوکي اختر | میانه | لوي اختر |
| رجب | شعبان | رمضان | شوال | ذیلقعده | ذیلحجه |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| حمل | ثور | جوزا | سرطان | اسد | سنبله |
| وری | غویی | غبرګولی | چنګاښ | زمری | وږی |
| میزان | عقرب | قوس | جدی | دلو | حوت |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تله | لړم | لیندۍ | مرغوی | سلواغه | کب |

ګرائمر:

**٥. کیدل والا مصدرونه:** هغه دي چې په پای کښې یې "کیدل" راغلې وي، یعنې د مصدر ښه پکښې "کیدل" وي، دا مصدرونه په دوه ډوله دي:

که چېرې په ټولو "کول والا" مصدرونو د "کول" پر ځای "کیدل" راوړل شي له لومړي ډول نه یې لومړی ډول "کیدل والا مصدرونه" او له دویم ډول نه یې دویم ډول "کیدل والا" مصدرونه په لاس راځي. "کیدل والا" مصدرونه هم ټول ترکیبي مصدرونه دي، مثالونه یې په دا ډول دي:

| شمېره | الف | | ب | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | |
| ١ | پخلا کیدل | راضي شدن | کر کیدل | کر+ کیدل | کاشته شدن |
| ٢ | پرې کیدل | پاره شدن | واښه کیدل | واښه+ کیدل | سبزه چیده شدن |
| ٣ | پورې کیدل | ان ور رفتن | زیاتې کیدل | زیاتې + کیدل | زیادتي شدن |
| ٤ | پورته کیدل | بالا شدن | ظلم کیدل | ظلم + کیدل | ظلم شدن |

## مشق

الف: د لاندنیو جملو ژباړه وکړئ

١. کار گل خان در ماه محرم شروع شد. ٢. در ماه صفر از نان چوري می سازند.٣. باغ بختور خان اینجا است.٤. راضی شدن احمد گل در ماه شعبان بود.٥. آنجا دو تا بچه نواده من هستند .٦. شهر ښاېسته خان در ماه ربیع الثانی بنا شد.٧. دو ماه بعد ماه رمضان شروع می شود. ٨. به این مهمانسرا هتل هم گفته می شود.٩. درمیان دیروز و فردا امروز شنبه است. ١٠. پریروز ماه ربیع الثاني تمام شد.

ب: لس داسې جلمې ولیکئ چې په هغې کښې د لسو میاشتو نومونه استعمال شوې وي.

# شپږم لوست

## موسمونه/ فصلونه

پسرلی د کال لومړنې فصل دی. په دې فصل کښې هوا ښه وي. د غرو لمنې او دښتې په رنګارنګ ګلانو ښایسته او ښکلې وي. بلبلې په باغونو کښې چغیږي. مرغان ځالې جوړوي، کوچیان شنو دښتو او د غرو لمنو ته ځي. کروندګر په خپلو ځمکو او باغونو کښې کارونه کوي. زده کوونکي د خپلو زده کړو لپاره ښوونځي ته ځي. دویم فصل اوړی دی چې دې ته دوبې او د ګرمي هم ویل کیږي. چې پکښې ډېره ګرمي وي. دریم فصل منی دی. چې ځینې خلک ورته خزان هم وایي. په دې فصل کښې د ونو پاڼې ژیړې وي. بیا ورپسې د ژمی وار دی چې پکښې هوا ډېره زیاته سړه وي. واوره وریږي او خلک د ځان ګرمولو لپاره اور بلوي. نو په دې طریقه په یو کال کښې څلور فصلونه تیریږي. چې هر یو فصل ځانله جلا جلا خوند لري. او پکښې بیلا بیلې میوې پیدا کیږي.

**نوي تکي:**

پسرلی: بهار لمن: دامن دښته: صحرا ښکلې: ښایسته بلبله: بلبل چغیږي: صدا میدهد مرغان: پرندها ځاله: آشیانه کوچیان: خانه بدوش کروندګر: کشاوز ځمکه: زمین اوړی/دوبې: تابستان منی: خزان ځینې: بعضی ژمی: زمستان واوره: برف وریږي: میبارد

**ګرائمر:**

۱. په پښتو کښې د عربې او نورو ژبو له مصدرونو څخه د (ول، یدل، کول، کیدل) په یو ځای کولو مرکب مصدرونه جوړیږي خو جوړښت یې د پښتو ژبې د قوانینو تابع دی، یعنې هغه نومونه چې په صحیح توري پای ته رسیدلي وي زیاتره د (ول، یدل) په یوځای کولو او هغه چې په (الف، ه، ی، ع ، ح) پای ته رسیدلې وي د "کول، کیدل" په یوځای سره مصدرونه جوړیږي:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| معلوم | معلومول | معلومیدل | التجاء | التجاءکول | التجاء کیدل |
| قبول | قبلول | قبولیدل | اصلاح | اصلاح کول | اصلاح کیدل |
| استعمال | استعمالول | استعمالیدل | دعا | دعا کول | دعا کیدل |
| ظاهر | ظاهرول | ظاهریدل | مناظره | مناظره کول | مناظره کیدل |
| صبر | صبرول | صبریدل | افتتاح | افتتاح کول | افتتاح کیدل |

۲. ځینې تکي داسې هم شته چې د دې قاعدې پر خلاف هم راتلی شي. لکه ظلم، چې ظلم کول او ظلم کیدل سره جوړیږي. او د "ظلمیدل" او "ظلمول" استعمالول غلط دي.

۳. په پښتو ژبه کښې ټول مصدرونه د جمع مذکر په توګه استعمالیږي. یعنې که د هغه لپاره صفت یا نور داسې څه شې راوړل کیږي نو هغه د جمع مذکر په توګه وي. لکه قبلول ښه دي. ستا صبر کول بد دي.

## مشق

الف: د لاندنیو پوښتنو ځوابونه ولیکئ.

۱. په کوم موسم کښې مرغان ځالې جوړوي؟ ۲. په ژمي کښې هوا څنګه وي او خلک پکښې څه کوي؟

۳. د اوړي نور نومونه ولکئ؟ ٤. په مني کښې ونې څنګه وي؟

ب: د څلورو موسمونو په هکله څلور جملې ولیکئ.

# اووم لوست

## کسب او کار

کسبګر د خدای دوست دی. په دنیا کښې ډول، ډول کسبونه شته لکه ترکاڼي، بزګري، پښتوب، سوداګري، زرګري، کولالي او داسې نور. د کسب زده کړه یوه داسې خزانه ده چې هیڅ کله نه خلاصیږي او نه یې غل وړې شي. کسبګر د خپل کسب په وسیله حلاله روزي پیدا کوي. هر چیرته چې لاړ شي، کار ورته پیدا کیږي، له همدې امله پر خپل ژوند خوشاله وي.

داؤد علیه السلام سره له دې چې د خدای له خوا پیغمبر ؤ، د پښتوب کسب یې هم کاوه. د جنګ لپاره به یې د زغرو جامې جوړولې. هغه به یې بازار ته وړلې او له دې لارې څخه به یې حلاله روزي لاس ته راوړله.

**نوي تکي:**

کسب: کار   کسبګر: کسي که یک کار(فن) بلد باشد.   ډول ډول: قسم قسم   ترکاڼي:نجاری  بزګري: کشاورزي   پښتوب: آهنګری   سوداګري: تجارت   زرګري: طلا فروشي   کولالي: ظرفها ګلي درست کردن   هیڅ کله: هیچ وقت   غل: دزد   وړل: بردن   چیرته: جای که   سره له دې: با اینکه   خوا: طرف   زغره: زره.

ګرائمر:

په پښتو کښې ماضي په نهه ډوله ویشل کیږي:

۱. استمراري ماضي، ۲.مطلقه ماضي، ۳. نژدې ماضي، ٤. لرې ماضي، ٥. امکاني استمراري ماضي، ٦. مطلقه امکاني ماضي، ۷. احتمالي ماضي، ۸. تمنايي ماضي، ۹. تاکیدي ماضي.

۱. د **استمراري ماضي د جوړولو لار**: داسې جوړیږي چې د ټولو لام والا مصدرونو (افعال معلوم) په پای کښې یې متصل فعلي ضمیرونه ورزیات کړې لکه: له راتلل او پخلا کول مصدرونو څخه لاندني مثالونه

| مفردمتکلم | جمع متکلم | مفرد مخاطب | جمع مخاطب | مفردمذکر غایب | جمع مذکر غایب | مفرد مؤنث | جمع مؤنث |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| راتلم | راتلو | راتلې | راتلئ | راته/راتلو | راتلل | راتله | راتلې |
| پخلا کولم | پخلا کولو | پخلا کولې | پخلا کولئ | پخلا کاوهٔ | پخلا کول | پخلا کوله | پخلا کولې |
| بوتلم | پوتلو | بوتلې | بوتلئ | بوته/بوتلو | بوتلل | بوتله | بوتلې |

او حکمي متعدي مصدرونو څخه داسې جوړیږي چې فقط مصدر سره مخکښې ضمیر منفصل په یوځای کولو سره جوړیږي او نور څه بدلون پکښې نه راځي. لکه: "ویل"، چې "ما ویل، تا ویل" او نور:

| مفردمتکلم | جمع متکلم | مفرد مخاطب | جمع مخاطب | مفردمذکر غایب | جمع مذکر غایب | مفرد مؤنث | جمع مؤنث |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ما ویل | مونږ ویل | تا ویل | تاسو ویل | هغه ویل | هغوي ویل | هغې ویل | هغوي ویل |
| میگفتم | میگفتیم | میگفتی | میگفتید | میگفت | میگفتند | میگفت | میگفتند |
| ما خندل | مونږ خندل | تا خندل | تاسو خندل | هغه خندل | هغوي خندل | هغې خندل | هغوي خندل |

مجهول استمراري ماضي "کیدل" هم د لام په حذف کولو او د هغې پر ځاي د متصلو ضمیرونو په راوړلو سره ماضي استمراري جوړیږي او د لام والا متعدي مصدرونو د کیدل پر ځاي د "شول" یا "شوم" په یوځای کولو سره هم ماضي استمراري فعل جوړیږي. لکه له "ساتل کیدل" او "وهل کیدم"

| مفردمتکلم | جمع متکلم | مفرد مخاطب | جمع مخاطب | مفردمذکر غایب | جمع مذکر غایب | مفرد مؤنث | جمع مؤنث |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ساتل کیدم | ساتل کیدو | ساتل کیدې | ساتل کیدئ | ساتل کیدهٔ | ساتل کیدل | ساتل کیدله | ساتل کیدلې |
| وهلی شوم | وهلي شوو | وهلي شوې | وهلي شوئ | وهلی شو | وهلي شول | وهلي شوه | وهلي شوې |
| زده میشدم | زده میشدیم | زده میشدی | زده میشدید | زده میشد | زده میشدند | زده میشد | زده میشدند |

## مشق

الف: د لاندې پوښتنو ځوابونه ولیکئ

کسبګر ولې په خپل ژوند خوشاله وي؟

حضرت داؤد (ع) څوک ؤ او څهٔ کسب یې کاوهٔ؟

حضرت داؤد (ع) به څنګه حلاله روزي لاس ته راوړله؟

ب: د لاندنیو جملو ژباړه وکړئ

۱. شما زده می شدید. ۲. انها نگهداري میشدند. ۳. تو میگفتی که او ما را راضی میکرد. ٤.از طرف تو من نگهداری میشدم. ٥. من میگفتم او شماها را راضی میکرد. ٦. او یک زن در روز چارشنبه زده مي شد. ٧. من در روز پنجشنبه می امدم. ٨. این دخترها در روز دو شنبه می امدند. ۹. اگر تو میگفتی من می امدم. ۱۰. انها در روز سه شنبه به هرات میرفتند.
ج: له لاندینو ټکو څخه جملې جوړې کړئ
۱. اوړی، ۲. پښتوب، ۳. چیرته، ٤. غل، ٥. ترکاڼي، ٦. ډول ډول، ٧. خوا، ٨. هیڅکله، ۹.وړل، ۱۰. زغره.

# اتم لوست

## ښه خوي

ښه خوي د سړي قدر عزت او درناوي زیاتوي. څوک چې ښه خوي لري هر چا ته ښه ښکاري. خلک ورته په درنه سترګه ګوري، زیاته مینه ورسره لري. له بدخویه سړي څخه کرکه کوي. حضرت محمد (ص) فرمایي: "د پوره ایمان څښتن هغه څوک دی چې اخلاق یې تر ټولو ښه وي".

صادق د ښوونځي د دویم ټولګي زده کوونکې او د ډېرو ښو اخلاقو څښتن دی، هغه تل د لمانځه لپاره جومات ته ځي. د ناروغانو پوښتنه کوي. د ښوونکي او مشرانو درناوې کوي، خبرې یې مني، له خپلوانو او ګاونډیانو سره ډېره ښه ګزاره کوي. پلار او مور سره په کارونو کښې مرسته کوي او هم له خپلو ټولګیوالو سره ډېره مینه لري.

سـړی پـه رنـګ نـه سـړی کـیږي
سړی هغه دی چې یې خوي د سړو وینه

نوي ټکي:
خوي: عادت چا: کس ښکاري: به نظر میاید ګوري: نګاه میکنند کرکه: نفرت پوره: کامل څښتن:خاوند/ صاحب ټولګې: جمات /کلاس تل: همیشه لمونځ: نماز خپلوانو: وابستګان/خویشاوندان ګاونډیان: همسایه ګان ګوزاره: ګذران مرسته:کمک ټولګیوال: همکلاس

**یادښت:** استفهامی ضمیرونه: چې د پوښتنې په وخت کښې د یو شخص یا یو څیز د نومونو پر ځاي استعمال شي چې ځینې په دا ډول دي: ۱. څومره/څونه (چه قدر) ۲. څه (چه، در حالت فاعلی ارتباطی و مفعولی) ۳. څو (چند) څوم/ څومه /څومې (رتبه چند) ٤. کوم/کومه/کومې/کم/کومې پورې/کومه یوه/کومو (کدام، که حالت مذکر، مؤنث و حالا فاعلی و اضافی ان فرق می کنند)

**٥. چا**: (بمعنی کی) د اشخاصو لپاره د متعدي ماضي په فاعلي ارتباطي حالت کښې استعمالیږي لکه: چا جنګ وکړ؟ دا سړی د چا ورور دی؟ چا ته وایې؟ په چا دې پور دی.

(په همدې ځایونو کښې عموماً د "زهٔ" ضمیر پر ځاي ما ضمیر استعمالیږي. لکه ما جنګ وکړه، ما ته وایې، په ما دې پور دی او نور....)

**٦. څوک**: (بمعنی کی) د اشخاصو لپاره دی او د "چا" په مقابل کښې عموماً د لازمي افعالو په فاعلي حالت کښې او په حال او راتلوونکي زمانه کښې د متعدي افعالو په فالي حالت کښې او عموما په مفعولي حالت

کښې استعمالیږي، خو ارتباطي حالت نه لري، مثلاً څوک لویدلې دی؟ څوک راځي؟ څوک دې وهي؟ څوک به دې بوځي؟ تا څوک راوسته؟ ته څوک راولې او څوک بیایې؟

په همدې ځایونو کښې زیاتره د "زهٔ" ضمیر استعمالیږي، لکه: زهٔ لویدلې یم، زهٔ راځم، زهٔ دې وهم، زهٔ به دې بوځم، تا زهٔ راوستم، خو په مفعولي حالت چې فعل متعدي وي نو بیا د "زهٔ" پر ځای "ما" ضمیر استعمالیږي.

**گرائمر:**

معلومه مطلقه ماضي: داسې جوړیږي د لام او یدل والا مصدرونو استمراري ماضي جوړه کړې له هغې وروسته ورسره په اول کښې د مطلقیت والا "و" ورزیات کړی لکه:

| مفردمتکلم | جمع متکلم | مفرد مخاطب | جمع مخاطب | مفردمذکر غایب | جمع مذکر غایب | مفرد مؤنث | جمع مؤنث |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وساتلم | وساتلو | وساتلې | وساتلئ | وساته | وساتل | وساتله | وساتلې |
| وگرځولم | وگرځولو | وگرځولې | وگرځولئ | وگرځاوهٔ | وگرځول | وگرځوله | وگرځولې |

د حکمي متعدي مصدورنو څخه معلومه مطلقه ماضي د استمراري ماضي په پیل کښې د مجرد "و" په راوړلو سره جوړیږي لکه له خندل، ژړل، لامبل او نورو څخه

| مفردمتکلم | جمع متکلم | مفرد مخاطب | جمع مخاطب | مفردمذکر غایب | جمع مذکر غایب | مفرد مؤنث | جمع مؤنث |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ماوخندول | مونږوخندول | تاوخندول | تاسووخندول | هغهٔوخندول | هغويوخندول | هغېوخندول | هغويوخندول |
| ماوژړل | مونږوژړل | تاوژړل | تاسووژړل | هغهٔوژړل | هغويوژړل | هغېوژړل | هغويوژړل |
| من گریه کردم | ما گریه کردیم | تو گریه کردی | شما گریه کردید | او گریه کرد | انها گریه کردند | او گریه کرد | انها گریه کردند |

## مشق

الف: لاندني ټکي په خپلو جملو کښې استعمال کړئ

چا، څوک، ما، زه، تل، گاونډیان، گزاره، کرکه، پوره، څښتن.

ب: د لاندنیو پوښتنو ځوابونه ولیکئ

۱. پیغمبر(ص) دښو اخلاقو په هکله څهٔ فرمایي؟

۲. د صادق له ښو اخلاقو څخه دوه ولیکئ

۳. خلک له چا سره مینه کوي؟

٤. خلک له چا کرکه کوي؟

ج: د لاندنیو جملو په پښتو کښې ژباړه وکړئ

۱. من در مدرسه خیلی گریه کردم. ۲. شما در موسم سرما زیاد خندیدید. ۳. او از همسایه ها نگهداري کرد. ٤. من در جنگ مرده بودم ولی خدا مرا نگه داشت. ٥. ان زنها در روستای ما دور زدند. ٦. شما دنبال انها خیلی گریه کردید. ۷. همکلاسی های ما در تابستان به شهر شما می آمدند. ۸. در بهار امسال هوا خیلی خنک است. ۹. صاحب این خانه دوسال پیش مرده است. ۱۰.من در کارها ی خانه با مادر کمک می کنم.

# نهم لوست

## د ملالۍ بوټونه

ملالۍ خپلې مور ته وویل: مورې! ډېر وخت کیږي، چې مونږ له ښوونځي څخه رخصت شوي یو. ما په رخصتۍ کښې له ملګرو سره لوبې وکړې. زمونږ رخصتي ډېره ښه تېره شوه. خو مورې! زمونږ ښوونځې کله پیل کیږي؟

مور یې وویل: ستاسې ښوونځي درې ورځې وروسته پیل کیږي. کله چې ملالۍ د مور خبره واوریده. ژر پلار ته ورغله او ویې ویل: زمونږ ښوونځې درې ورځې وروسته پیل کیږي، زۀ کالي، کتابچې او قلم لرم خو بوټونه مې زاړه شوي دي.

پلار یې وویل: هو لورې بوټونه دې زاړه شوي دي، زۀ به تا او زمرک ته له بازاره نوي بوټونه راوړم ځکه د زمرک بوټونه هم له کاره وتلي دي.

زلمي، زمرک او ملالۍ ته وویل: "وګورئ! پلار ستاسو لپاره بوټونه راوړي دي څومره ښه بوټونه دي. زه د ښوونځي لپاره کالي، کتابچې او قلم لرم، بوټونه مې هم نوي دي، خو ستاسو بوټونه زاړه شوي وو. پلار دغه نوي بوټونه تاسې ته راوړي دي . خپل نوي بوټونه مو واخلئ.

ملالۍ وویل: زمرکه! دا دي خپل بوټونه دې واخله. زمرک خپل بوټونه په پښو کړل پلار، ملالۍ او زمرک ته وویل: خپل نوي بوټونه مو په پښو کړل؟ خوښ مو شول؟

زمرک وویل: هو پلاره! خپل نوي بوټونه مو په پښو کړل، ډېر مو خوښ شول.

ملالۍ وویل: پلاره! اوس مونږ د ښوونځي لپاره کالي، کتابچې او قلمونه لرو، بوټونه مو هم نوي شول، له تاسې څخه ډېره مننه کوو.

## نوي ټکي:

بوټونه: یک نوع کفش رخصت: تعطیل لوبې: بازی واوریده: شنید(اوریدل) ورغله: پیش او رفت زوړ/زړه/زړې/زاړه: قدیم وګوره: نګاه کن(کتل) نوي/نوې: جدید وتل: بیرون رفتن واخلئ: بګیرید(اخستل) مننه: تشکر

الف: د پوښتنو ځوابونه ولیکئ.

۱. ملالۍ ولې بوټونه غوښتل؟

۲. زلمي هغوي ته څه وویل؟

۳. ملالۍ خپلې مور ته څه وویل؟

٤. مور ملالۍ ته څه ځواب ورکړ؟

ب: له نوو ټکو څخه جملې جوړې کړئ.

بوټونه، رخصت، لوبې، واوریده، ورغله ،زوړ/زړه/زړې/زاړه، وګوره، نوي/نوې ،وتل، واخلئ مننه

| | |
|---|---|
| همه واړه په تسبیح د دهٔ مشغول دي | که ملک دی که پیری دی که انسان دی |
| هر ماهي یې په دریاب کښې حمد وایي | هر مارغه یې په چمن کښې ثنا خوان دی |
| حد پایان یې هیڅ سړي موندلی نه دی | معرفت یې هسې بحر بې پایان دی |
| نه یې مثل نه یې مثال نه یې مکان شته | دي بې مثله بې مثاله بې مکان دی |
| پاک یې وګڼه بې شکه بې ګومانه | له هغه چې د چا شک د چا ګومان دی |
| نهٔ یې څوک په سترګو ویني نه لیدې شي | او بې چونه بې چګونه نمایان دی |

نوي ټکي:

همه واړه: همه　دهٔ: این (اشاره برای نزدیک و ذي روح)　پیری: جن　دریاب: دریا　مارغه: پرنده　منوندل: پیدا کردن　هسې: بې فایده/ مفت/ شان/لکه　ګومان: ظن/ شک　ویني: میبیند (لیدل)

## مشق

۱. د دې نظم نثر ولیکئ

۲. د لاندنیو ټکو څخه جملې جوړې کړئ:

دهٔ، همه، واړه، پیری، دریاب، مارغه، ویني، ګومان، هسې، منوندل

۳. د لاندنیو ټکو متضاد ولیکئ.

| تور | ورځ | لنډ | ماښام | نوې | خندل |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | |

## افغانستان

افغانستان زمونږ خوږ اسلامي هیواد دی. ګران افغانستان ښکلي باغونه او رنګارنګ میوې لري. زمونږ هیواد هسک او جګ غرونه لري. لوي لوي سیندونه او ارزښتمن کانونه هم لري. مونږ ټول د خپل هیواد بچیان یو. خپله خاوره او وطن راباندې ګران دی، او پر مونږ د مور په څېر حق لري.

مونږ خپل هیواد تل خپلواک ساتو او د ابادۍ او ودانۍ په لاره کښې یې زیار باسو.

نوي ټکي:

هیواد: کشور　هسک/جګ: لوړ　سیندونه: دریابونه/دریاها　ارزښتمن: باارزش　کانونه: ذخائر　څېر: مثل　خپلواک: خودمختار　وداني: ابادي.

ګرایمر:

نږدې ماضي: (در فارسی مثل کرده است، خورده است و...) د ټولو مصدرونو څخه د شپږو کومکي فعلونو په مرسته جوړيږي چې عبارت دي له: يم، يو، يې، يئ، دی، دي، ده، دي. (۱) (د لام والا، ول والا او يدل والا مصدورنو څخه په پاي کښې د شپږو کومکي فعلونو په ورزياتولو څخه جوړيږي. لکه:

| مفردمتکلم | جمع متکلم | مفرد مخاطب | جمع مخاطب | مفردمذکر غايب | جمع مذکر غايب | مفرد مؤنث | جمع مؤنث |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تللې يم | تللي يوو | تللې يې | تللي يئ | تللې دی | تللي دي | تللې ده | تللي دي |
| لاړ يم | لاړ يوو | لاړ يې | لاړ يئ | لاړ دی | لاړ دي | لاړه ده | لاړې دي |

(۲) د "ول" او "کول وال" مصدرونو کښې تر فعلي صفت وروسته کومکي فعلونه راوړل کيږي، لکه:

| مفردمتکلم | جمع متکلم | مفرد مخاطب | جمع مخاطب | مفردمذکر غايب | جمع مذکر غايب | مفرد مؤنث | جمع مؤنث |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ويښ کړې يم | ويښ کړي يوو | ويښ کړې يې | ويښ کړي يئ | ويښ کړې دی | ويښ کړي دي | ويښه کړې ده | ويښې کړې دي |
| مرا بيدار کرده است | ما را بيدار کرده است | تو را بيدار کرده است | شما را بيدار کرده است | او را بيدار کرده است | انها را بيدار کرده است | او را بيدار کرده است | انها را بيدار کرده است |

(۳) يدل والا مصدرونو څخه د شول د فعل صفت وروسته کومکي فعلونه راوړل کيږي. لکه:

| مفردمتکلم | جمع متکلم | مفرد مخاطب | جمع مخاطب | مفردمذکر غايب | جمع مذکر غايب | مفرد مؤنث | جمع مؤنث |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ويښ شوې يم | ويښ شوي يوو | ويښ شوې يې | ويښ شوي يئ | ويښ شوې دی | ويښ شوي دي | ويښه شوې ده | ويښې شوې دي |

(٤) له حکمي متعدي مصدورونه څخه له فعلي صفت څخه د نارينه جمع (جمع مذکر) په بڼه جوړيږي لکه: خندل

| مفردمتکلم | جمع متکلم | مفرد مخاطب | جمع مخاطب | مفردمذکر غايب | جمع مذکر غايب | مفرد مؤنث | جمع مؤنث |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ما خندلي دي | مونږ خندلي دي | تا خندلي دي | تاسو خندلي دي | هغه خندلي دي | هغوي خندلي دي | هغې خندلي دي | هغوي خندلي دي |
| ما ژړلي دي | مونږ ژړلي دي | تا ژړلي دي | تاسو ژړلي دي | هغه ژړلي دي | هغوي ژړلي دي | هغې ژړلي دي | هغوي ژړلي دي |

## مشق

۱. د خپل هيواد په هکله پينځه جملې وليکئ

۲. له لاندنيو ټکو او ترکيبونو څخه جملې جوړې کړئ

هيواد، ارزښتمن، خپلواک، خپل وطن، سيندونه، ښکلي باغونه، خپله خاوره، په څېر

۳. د لاندنيو جملو فعلونو ته په پام سره په پښتو کښې ژباړه وکړئ

۱. کشور ما افغانستان يک کشور خودمختار است. ۲. تو به دنبال او خيلی گريه کرده ايد. ۳. تو خيلی ميخنديديد. ٤. تو از خواب بيدار شده ايد. ٥. دو سال قبل من به کشور خورم رفته ام. ٦. گل مخی پارسال

به کابل رفته است. ۷. ایا تو به کشور خود رفته اید. ۸. او درکنار دریا نشست تو نشسته اید و من هم می نشینم. ۹. من غذا می خورم زیرا که تو خورده اید. ۱۰. او برای من، قابل عزت و باارزش است.

## ساعت څه وايي

واوره څه وايي ټک ټک د هر ساعت
که هوښيار يې اوسه ويښ په لياقت

وويريږه له لټۍ او بيکارۍ
له سبقه غفلت مه کړه يو ګړۍ

کوچنۍ ستنه د ساعت په کرارۍ
په خوږه ژبه ښه لاره درښيي

وايي واوره چې شو تېر هغه شو هېر
هوښيار نه ګرځي په تېرو پسې ډېر

ځان کړه ما غوندې توانا او خواري کښ
شپه او ورځ کوه سبا ته دې کوښښ

کهالي به دې په خوب کړي سترګې پټې
درته وبه تړي هره لار د ګټې

د هر چا ژوند دی تړلی په سبا
چې سبا لري ژوندې دی په رښتيا

څوک چې نه خوري نن د بلې ورځې غم
قبلوي به دوي سبا د بل ستم

### نوي ټکي:

واوره: بشنو(اوريدل) اوسه: (اوسيدل) باش ويښ: بيدار وويريږه: بترس لټۍ: کاهلی سبق: درس کوچنۍ: کوچک کراري: ارامش هېر: فراموش غوندې: مثل ستنه: ستون/عقربه/سوزن خواري کښ: زحمت کش کهالي: کاهلی پټول: پوشاندن تړل: بستن رښتيا: راست.

### ګرايمر:

لرې ماضي: (در فارسی مثل کرده بود، خورده بود و...) د ټولو مصدرونو څخه د اوو کومکي فعلونو په مرسته جوړيږي چې عبارت دي له: (وم، وو، وې، وئ، ؤ، وو، وه، وې)

۱. (د لام والا، ول والا او يدل والا مصدورنو څخه په پاي کښې د اوو کومکي فعلونو په ورزياتولو څخه جوړيږي. لکه:

| مفردمتکلم | جمع متکلم | مفرد مخاطب | جمع مخاطب | مفردمذکر غايب | جمع مذکر غايب | مفرد مؤنث | جمع مؤنث |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تللې وم | تللي وو | تللې وې | تللي وئ | تللې ؤ | تللي وو | تللې وه | تللي وې |
| لاړ وم | لاړ وو | لاړ وې | لاړ وئ | لاړ ؤ | لاړ وو | لاړه وه | لاړې وې |
| راغلې وم | راغلي وو | راغلې وې | راغلي وئ | راغلې ؤ | راغلي وو | راغلې وه | راغلي وې |

(۲) د "ول" او "کول وال" مصدرونو کښې تر فعلي صفت وروسته کومکي فعلونه راوړل کيږي، لکه:

| مفردمتکلم | جمع متکلم | مفرد مخاطب | جمع مخاطب | مفردمذکر غايب | جمع مذکر غايب | مفرد مؤنث | جمع مؤنث |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ويښ کړې وم | ويښ کړي وو | ويښ کړې وې | ويښ کړي وئ | ويښ کړې ؤ | ويښ کړي وو | ويښه کړې وه | ويښې کړې وې |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مور کړې وم | مارۀ کړي وو | مور کړې وې | مارۀ کړي وئ | مور کړې ؤ | ماره کړي وو | مره کړې وه | مړې کړې وې |
| پخلا کړې وم | پخلا کړي وو | پخلا کړې وې | پخلا کړي وئ | پخلا کړې ؤ | پخلا کړي وو | پخلا کړې وه | پخلا کړې وې |
| مرا سیر کرده بود | ما را سیر کرده بود | تو را سیر کرده بود | شما را سیر کرده بود | او را سیر کرده بود | انها را سیر کرده بود | او را سیر کرده بود | انها را سیر کرده بود |

(۳) يدل والا مصدرونو څخه د شول د فعل صفت وروسته کومکي فعلونه راوړل کيږي. لکه:

| مفرد متکلم | جمع متکلم | مفرد مخاطب | جمع مخاطب | مفرد مذکر غایب | جمع مذکر غایب | مفرد مؤنث | جمع مؤنث |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ويښ شوې وم | ويښ شوي وو | ويښ شوې وې | ويښ شوي وئ | ويښ شوې ؤ | ويښ شوي وو | ويښه شوې وه | ويښې شوې وې |
| ستړې شوې وم | ستړي شوي وو | ستړې شوې وې | ستړي شوي وئ | ستړې شوې ؤ | ستړي شوي وو | ستړې شوې وه | ستړې شوې وې |
| خسته شده بودم | خسته شده بوديم | خسته شده بودي | خسته شده بوديد | خسته شده بود | خسته شده بودند | خسته شده بود | خسته شده بودند |

(٤) له حکمي متعدي مصدورونه څخه له فعلي صفت وروسته د نارينه جمع (جمع مذکر) په بڼه جوړيږي لکه:

| مفرد متکلم | جمع متکلم | مفرد مخاطب | جمع مخاطب | مفرد مذکر غایب | جمع مذکر غایب | مفرد مؤنث | جمع مؤنث |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ما خندلي وو | مونږ خندلي وو | تا خندلي وو | تاسو خندلي وو | هغه خندلي وو | هغوي خندلي وو | هغې خندلي وو | هغوي خندلي وو |
| ما ژړلي وو | مونږ ژړلي وو | تا ژړلي وو | تاسو ژړلي وو | هغه ژړلي وو | هغوي ژړلي وو | هغې ژړلي وو | هغوي ژړلي وو |

**يادښت:**

۱. د لرې ماضي او نږدې ماضي د منفي جوړولو لپاره د " نه" ادات له فعلي صفت څخه وروسته استعماليږي لکه:

راغلې نه يم، راغلې نه وم، خندلي نه دي، خندلي نه وو، ستړې شوې نه يم، ستړې شوې نه وو، مور کړې نه وم، مور کړې نه يم او نور....

۲. کله کله د تاکيد لپاره (نه وم) يا (نه يم) له فعلي صفت څخه د مخه استعماليږي لکه: نه يم راغلې، نه وم راغلې، نه وم تللې، نه يم تللې، ما نه وو خندلي، ما نه دي خندلي، ما کار نه ؤ کړې، ما کار نه دی کړی. تۀ ستړې نه وې شوې، زۀ ستړې نه يم شوې، کله کله هم په دې بڼه يې منفي هم استعماليدې شي بې له دې چې څه تاکيد پکښې وي. خو دا لهجې او ويلو پورې اړه لري.

## مشق

۱. د پورتني نظم نثر وليکئ

۲. د لاندنيو جملو ژباړه وکړئ

۱. دوست شما چه مى گويد. ۲. انها روز پنجشنبه به کربلا رفته بودند. ۳. من خيلی خسته شده ام. ٤. او به من گفت تو خيلی زحمت کش هستي. ۵. من اهل افغانستان هستم ولې در پشاور زندگي مى کنم. ٦.

ما صبح بیدار شده بودیم. ۷. تو در ماه شعبان خیلی خندیده بودید. ۸. من هفت سال پیش از اینجا رفته ام. ۹. ما تو را فراموش کرده ایم. ۱۰. من همیشه کشور خود را مثل مادر خود میدانم.

٤. د لاندنیو مثالونو په مرسته خالي ځایونه ډک کړئ

که کوچنۍ ستنه په دوه وي او لویه ستنه په درې وي نو پاؤ باندې دوه بجې دي.

که کوچنۍ ستنه څلور او پینځه تر مینځ وي او لویه ستنه په شپږ وي نو څلور نیمې بجې دي.

که کوچنۍ ستنه شپږو ته نږدې وي او لویه ستنه په نهه وي نو پاؤ کم شپږ بجې دي.

که کوچنۍ ستنه په دولس وي او لویه ستنه په دوه وي نو لس لپاسه دولس بجې دي.

که کوچنۍ ستنه په درې وي او لویه ستنه هم په درې وي نو.......................... بجې دي.

که کوچنۍ ستنه د درې او څلور تر مینځ وي او لویه ستنه په شپږ وي نو...................... بجې دي.

که کوچنۍ ستنه نهو ته نږدې وي او لویه ستنه په نهه وي نو.............................. بجې دي.

که کوچنۍ ستنه په لس وي او لویه ستنه په یو وي نو .......................................... بجې دي.

که کوچنۍ ستنه لسو ته نږدې وي او لویه ستنه په اتۀ وي نو ................................ بجې دي.

## خپلواکي

خپلواکي د خداي لوي نعمت دی.

انسانان د خپلواکۍ سره مینه لري، حیوانات او مرغان هم خپلواکي خوښوي. څوک چې د بل خپلواکي اخلي هغه خپله خپلواکي هم له لاسه ورکوي.

وایي چې یوه ورځ یو ښکاري په غرنۍ سیمه وربرابر شو ګوري چې یو زمری د غره په سر ویده دی، ښکاره په زمري د ټوپک وکړ زمری ولګیده او زخمي شو خو ښکاري په زړورتیا د زمري کور ته ورغی فکر یې کاوه چې زمری مړ دی، زخمي (ژوبل شوي) زمري ټوپ کړ، ښکاري چې ډېر ښکار یې کړې ؤ او نورې ګولۍ ورسره نه وې، ځاي نه یې دفاع ونۀ کړې شوه، د زمري په خوله ټوټې ټوټې شو.

له دې درس څخه دا نتیجه اخیستل کیږي چې چا ته خپله خپلواکي ګرانه وي د نورو خپلواکۍ ته په درنه سترګه ګوري. مونږ باید د نورو انسانانو بلکه د ځناور د خپلواکۍ خیال وساتو، مارغان په پینجرو کښې بند نه کړو ځکه چې دا ښه کار نه دی. او بیا د انسانانو خپلواکي اخستل خو لا زیاته بده خبره ده او د دنیا هیڅ یو مذهب هم د دې کار اجازه نه ورکوي. هر څوک چې د بل خپلواکي اخلي خپله خپلواکي هم له لاسه ورکوي په دې هکله خوشحال خان بابا فرمایي:

کوهې مۀ کنه د بل سـړي په لار کښې

چېرې ستا به د کوهي په غـاړه لار شي

نوي ټکي:

اخلي: (اخستل) میگیرد ورکوي: میدهد ښکاري: شکاري غرنۍ سیمه: منطقه کوهي وربرابر شو: به ان طرف راه افتاد ګوري: میبیند(کتل) زمری: شیر ویده: خوابیده ټوپک: تفنگ ولګید: (تېرخورد) لګیدل: خوردن زړورتیا: شجاعت ګولۍ:فشنگ(چیزگرد) ټوټې ټوټې: قطعه قطعه کوهې: چاه مه کنه: نکنید چېرې: کجا/گاهي غاړه: کنار

مشق

۱. د لاندنيو پوښتونو ځوابونه وليکئ
الف: خپلواکي څه ته وايي؟
ب: ښکاري ولې ټوټې ټوټې شو؟
ج: ولې بايد د بل د خپلواکۍ خيال وساتو؟
د: د خوشحال خان بابا د دې شعر مطلب څه دی؟
۲. له لاندنيو ټکو څخه جملې جوړې کړئ
اخستل، ورکول، ښکاري، سيمه، کټل، زمری، ګولۍ، زړورتيا، کوهې، کنل، غاړه
۳. د لاندنيو ټکو مترادف وليکئ او جملې ترې جوړې کړئ

| ښکلې | ابادي | هسک | لټي | ازادي | مثل | ګومان | زخمي | چېرې |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | | | | |

## ګرايمر:

**د حال فعل د استمرار او نه استمرار له مخې په درې ډوله دی:**

(۱) جاري حال يا استمراري: هغه دی چې په حال زمانه کښې يو کار په پرله پسې او دوامداره توګه څرګند کړي: لکه زلمې ليک ليکي، زهٔ کار کوم، دې ډوډۍ خوري

(۲) مطلق حال (مضارع) يا شرطي: په حال زمانه کښې د يو کار په کيدلو او امکان په مطلقه توګه (د استمرار له قيده پرته) دلالت وکړي شرطي حال د زياتو مطالبو لکه د "هيلې، پوښتنې، تاکيد، احتمال، شک، شرط، او د نورو د څرګندولو لپاره استعماليږي لکه: کاشکې يو ليک وليکي، ليک درته وليکم؟ بايد ليک وليکې، ګوندې راشي، که خط وليکې ښه به وي.

(۳) امکاني حال: چې په حاضره زمانه کښې د يو کار په قدرت او امکان دلالت کوي، لکه: زهٔ کار کولې شم، دې خط ليکی شي.

### جاري حال (استمراري)

له بيله بيلو فعلونو څخه په بيلا بيلو بڼو جوړيږي په دې کښې ځينې قانوني تغيير منوونکي مصدرونه دي او ځنې غېر قانوني تغيير منوونکي مصدرونه دي او ځينې تغيير نه منوونکي مصدرونه دي چې له بيانولو يې ډډه کوو، يوازې ځينې مثالونه يې بيانوو چې هم د دې په څېر دي چې ځينې وړاندې کوو:

۱. له تغيير نه منونکي فعلونو څخه (چې ټول متعدي دي) داسې جوړيږي چې د لام له حذفولو وروسته متصل فعلي ضميرونه راوړلې شي چې ټول تقريبا ۹۰ مصدرونه دي لکه: منل منم، پالل پالم، ويشل ويشم او نور

۲. په دې مصدرونو کښې د "لامونو" له حذفولو وروسته "ت" په "ځ" بدليږي:

| راتلل | تلل | درتلل | بوتلل | ننوتل | الوتل | جاروتل |
|---|---|---|---|---|---|---|
| امدن | رفتن | امدن | بردن | داخل شدن | پرواز کردن | برګرداندن |
| راځي | ځي | درځي | بوځي | ننوځي | الوځي | جاروځي |
| پورې وتل | لاندې وتل | وتل | تېر وتل | خطا وتل | پرې وتل | تر غاړې وتل |
| ان طرف رفتن | مشغول شدن | بيرون شدن | اشتباه کردن | خطا کردن | افتادن | هم بغل شدن |
| پورې وځي | لاندې وځي | وځي | تېر وځي | خطا وځي | پرې وځي | ترغاړې وځي |

او داسې نور مثالونه چې داسې صرف کيږي: زۀ ځم، ته ځې، هغه ځي او نور....

۳. هغه مصدرونه چې په "ايستل" يا "ويستل" پای ته رسيدلي وي د حال فعل د جوړښت لپاره د "ايستل" پر ځای "باسل" راوړل کيږي او د لام حذفولو وروسته په پای کښې متصل ضميرونو يو ځای کيږي. لکه: تېر ايستل تېرباسم، ننه ايستل ننه باسم، ويستل وباسم او نور.....

٤. هغه مصدرونه چې د مصدري لام له مخه يې "ست" يا "شت" وي د ست يا شت له حذفولو وروسته متصل ضميرونه يوځای کيږي (بې له دې چې لام يې حذف شي) او که د مصدري لام له مخه يې "است" وي نو د "است" او مصدري لام تر حذفولو وروسته متصل ضميرونه راوړل کيږي لکه لاندني مثالونه:

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لوستل | ويشتل | کښيناستل | راوستل | اخيستل | ثملاستل | راخيستل |
| خواندن | زدن(با تير...) | نشستن | اوردن | خريدن/گرفتن | دراز کشيدن | برداشتن |
| لولي | ولي | کښيني | راولي | اخلي | ثملي | راخلي |

٥. له حکمي متعدي مصدرونو څخه داسې جوړيږي چې په ټولو صيغو کښې د مصدري لام تر حذفولو وروسته، تر لومړي ټکي وروسته يو الف زياتيږي او په پای کښې متصل فعلي ضميرونه راوړل کيږي لکه خندل = خاندم

| مصدرونه | خندل | ژړل | زنګل | لمبل | ويل | غپل |
|---|---|---|---|---|---|---|
| زه | خاندم | ژاړم | زانګم | لامبل | وايم | غاپم |
| مونږ | خاندو | ژاړو | زانګو | لامبو | وايو | غاپو |
| ته | خاندې | ژاړې | زانګې | لامبې | وايې | غاپې |
| تاسو | خاندئ | ژاړئ | زانګئ | لامبئ | وايئ | غاپئ |
| هغه/هغوي | خاندي | ژاړي | زانګي | لامبي | وايي | غاپي |

٦. او ځينې داسې دي چې څه قاعده او قانون نه لري چې ځينې (مشهور) يې په لاندې توګه دي:

| مصدرونه | کتل | ليدل | وژل | موندل | نښتل | ختل |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ژباړه | ديدن/نگاه کردن | ديدن/نگاه کردن | کشتن | يافتن | دعوی کردن/چسپيدن | بالا رفتن |
| حال | ګورم | وينم | وژنم | مومم | نښلم | خيژم |

# پاکي

سليم چې يو تکړه او پوه زده کوونکې ؤ، خپلو ټولګيوالو به يې ډېر درناوې کاوۀ. ځکه دې د خپل ټولګي اول نومره هم ؤ. که څۀ هم سليم له يوې بزګرې کورنۍ څخه ؤ خو دۀ د نظافت سره ډېره مينه درلوده. تل به يې خپل زاړه کالي ډېر پاک ساتل، مخکښې له دې چې سهار ښوونځي ته لاړ شي، دۀ به خپل لاسونه او غاښونه پاک ومينځل. بيابه يې خپل بوټونه رنګ کړل او ښوونځي ته به روان شو. يوه ورځ په ټولګي کښې ښوونکي ورته وويل: "سليم جانه! ته ډېر لايق او هوښيار هلک يې، ځکه ستا نظافت زما ډېر خوښ شو".

سليم ورته وويل: "هو! روغتيا او سلامتي په پاکوالي کښې ده. هر څومره چې د انسان نظافت ښه وي هغومره يې صحت ښه وي. که د انسان صحت ښه نه وي، نه شي کولای چې د خپل ژوندانه کارونه په ښه توګه پرمخ بوځي. نو مونږ زده کوونکيو ته لازمه ده چې خپلې روغتيا ته پوره پاملرنه وکړو. له خاورو، خځلو او

چټلیو څخه ځان وژغورو اومې میوې او خراب خواړه ونه خورو چې بدن مو روغ او صحت مو جوړ وي. ښه ژوند په روغتیا کښې پروت دی خو زمونږ ځینې ټولګیوال ډېر بې پروا دي ناپاکې میوې خوري چې ټول د انسان صحت ته ضرر رسوي او په ناروغۍ اخته کیږي، ځینې زده کوونکي شته چې خپلو کالیو، د سر ویښتو او نوکونو ته هیڅ پاملرنه نه کوي، چې دا د دوي د تنبلۍ غټه نښه ده ځکه ښه زده کوونکي تل خپل غاښونه، مخ، لاسونه او ځان پاک مینځي او په اونۍ کښې یو وار خپل نوکونه پرېکوي چې دا ټول له یوې خوا د انسان نظافت او پاکوالي ته او له بلې خوا روغتیا ته پوره ګټه رسوي.

ښه زده کوونکي هغه څوک دي خپلې روغتیا او نظافت ته پوره پاملرنه کوي، روغتیا د انسان د برۍ یوه برخه او ناروغي د انسان د ناکامۍ سبب ګرځي. راځئ چې خپل پاکوالې، نظافت او روغتیا په رښتینې توګه وساتو. چې په ناروغو اخته نه شو.

(د شپږم ټولګي یو لوست)

نوي ټکي:

تکړه: توانا درلودل: لرل روان شو: راه افتاد(روانیدل) څومره: چقدر هغومره: همانقدر پرمخ بوتلل: جلو بردن (پرمختګ: ترقي) خځله: آشغال چټلې: ناپاک،سخا،ګنده، پلیت،خیرن ککړ و... ژغورل: ساتل اوم: ناپخته/ نه‌رسیده پروت: ماندن اخته: مشغول نوک: ناخن پریکول: بریدن بري: موفقیت توګه: طور

یادابښتونه:

۱. که فاعل او مفعول دواړه څرګند نومونه وي یا فاعل ځانله خپلواکه ضمیر وي نو په دغه صورت کښې فاعل د مفعول څخه د مخه راځي لکه: سلیم حمید وواهه، ما حمید ته ډوډۍ ورکړه، او په هغه صورت کښې چې فاعل ناخپلواک ضمیر وي هلته مفعول د مخه راځي لکه: سلیم مې ولید ، زهٔ دې ولیدم.

۲. په لازمي، حالي او استقبالي متعدي افعالو کښې فعل عموماً د فاعل تابع وي او په ماضي متعدي افعالو کښې فعل د مفعول تابع وي یعنې په لومړي کښې له فاعل او په دویم کښې له مفعول سره سم راځي لکه:

لازمي فعلونه: سلیم ولاړ، رحیمه ولاړه، هلکان ولاړل، اینجلۍ لاړې، ښځې کښیناتې، سړي کښیناستل.

متعدي حال استقبالي متعدي: زهٔ مالګه اخلم، ته غوښه اخلې، هغه به اوبه وڅښي.

متعدي ماضي: هغه ډوډۍ وخوړه، هغه انار وخوړ. هغه اوبه وڅښې. ما مالګه اخستلې ده. ما غوړي اخستي دي. ما اوړه اخستي دي . تا ډوډۍ خوړلې وه. او نور........

۳. ارتباطي ادات په پښتو کښې په دوه ډوله دي: سرینه (سابقه) چې د مدخول په سر کښې راځي لکه: (په، پر، د، تر، له، بی) پسینه (لاحقه) چې له مدخول څخه وروسته راځي لکه (له ، ته، لره، نه، څخه، لپاره، باندې، کښې، لاندې، پورې، پشان، غوندې، په څېر، پسې، راسې)

مشق

۱. د لاندنیو ټکو په مرستې سره خالي ځایونه ډک کړئ

اخته، نوکونه، توګه، بري، پرمختګ، خځله، پریکول، اوم، تکړه، هغومره

مونږ ته پکار دي چې په اونۍ کښې یو ځل خپل..........پریکوو او .........خوارِه وښهٔ خورو ځکه چې په ناروغۍ..........نه شو. څومره چې انسان..........وي .......... د درناوي وړ وي. د مثال په ..........وایي کوهې مه کنه د بل سړي په لار کښې چېرې ستا به هم د کوهي په غاړه لار شي ښه خوي د انسان د .........او..........سبب کرځي. په کار دا دي چې په لارو کښې .......... نه اچوو.

۲. د لاندنیو جملو ژباړه وکړئ.

۱. من دیروز غذا خوده بودم. ۲. او صبح دندانهای خود را شسته است. ۳. اسلام اجازه نمی دهد که کسی ازادی دیگران را بگیرد. ٤. من او را مثل دشمن خودم زده ام. ٥. من با شجاعت از همکلاسی های خودم دفاع می کنم. ٦. پارسال خیلی از برادران افغانی به کشور خود رفته بودند. ۷. اگر اختیار هر انسان در دست خودش بود هیچ کس حصه بد را دوست نمي داشت. ۸. هر قدر که انسان دیگران را احترام کند دیگران همانقدر دیگران هم او را احترام خواهند کرد. ۹. جنگیدن براي دفاع از خود سخن بدي نیست. ۱۰. من همراه برادرم از قندهار به کابل با اتوبوس امده بودم.

۳. د لاندنیو پوښتنو ځوابونه ولیکئ.

۱. د سلیم ټولګیوالو ولې د هغه درناوي کاوه؟

۲. سلیم د خپلو ځینو ټولګیوالو په هکله څه وویل؟

۳. ولې وایو چې: "روغتیا د برۍ یوه برخه ده"؟

٤. د ښې زده کړې لپاره لاندنې متن فعلونو او سرینې او پسینې ته په پام سره ولولئ.

## د حقونو رساله

د امام سجاد (ع) یو قیمتي اثر او کتاب د "حقونو رساله" ده چې د پخوانیو عالمانو په کتابونو کښې یې یادونه شوې ده په تحف العقول کتاب کښې ټوله موجوده ده.او په من لا یحضره الفقیه، خصال ، امالي کښې یې هم ځنې برخې راغلي دي. بده نهٔ ده چې له دغه کتابه هم ځینو برخو ته اشاره وکړی شي چې د هر یو څیز د حقونو په حقله یې لیکلی دی.

**د خداي حق**: د لوي خداي حق په تا دا دی چې د هغهٔ عبادت وکړې. شریک ورسره ونهٔ ټاکې او که په اخلاص سره دې داسې وکړل نو خداي پاک به دې دنیا او اخرت ښهٔ کړي.

**د نفس حق**: د نفس حق په تا دا دی چې د خداي پاک په اطاعت کښې ترې کار واخلې.

**د ژبې حق**: له بدو خبرو او کنځلو ساتل او د نیکو خبرو عادت، همدا شان د چټي او فضولو خبرو نه ځان بچول او له خلقو سره د ژبې په ذریعه نیکي کول.

**د غوږونو حق**: د غوږونو حق له غیبته او ناجائز او حرامو څخه ددې ساتل دي.

**د سترګو حق**: له حرامو نظارو ساتل، او د سترګو په ذریعه عبرت اخستل.

**د لاسونو او پښو حق**: د پښو حق دا دی چې هغو ځایونو ته پرې لاړ نشې چې حلال نهٔ دي ځکه چې په همدغو پښو به د صراط په پل ودرېږې نو خیال کوه چې ونهٔ ښویږې. او په اور کښې پرې نهٔ وځې.

**د خېټې حق**: دا دی چې د حرامو ځاله یې نهٔ کړې او له ضرورته زیات ونهٔ خورې.

**دعورتینو یا شرم ځایونو حق**: چې له زنا او فحشاوو یې وساتې او د نورو له نظره یې پټ کړې.

**د نمانځهٔ حق**: د مانځهٔ حق دا دی چې پوه شې چې مونځ د خدایې درته حاضریدل دي او په مانځهٔ کښې خدایې ته ولاړ یې او که په دې پوه شوې نو په ډېرې عاجزۍ او غریبۍ سره به ودرېږې او په زړهٔ سره به هغهٔ ته متوجې کیږې او د مونځ حق به ادا کړې.

**د حج حق**: دا دی چې پوه شې چې حج د خدایې درته ورتلل او له ګناهونو څخه خدایې ته پناه وړل دي. ستا د توبې د قبلیدو وسیله او د هغې فریضې کول دي چې خدایې په تا فرض کړې ده.

**د روژې حق**: دا دی چې پوه شې چې روژه داسې پرده ده چې لویې خدایې ستا په خلهٔ ،غوږونو، سترګو، خیټې او شرم ځایونو اچولې ده چې په دې وسیله دې له اوره وساتي او که روژه دې پریښوده نو د خدایې پرده دې شلولې ده.

**د صدقې حق**: دا دی چې خبر شی دا ستا په نزد د خدایې یوه صدقه ده. او داسې امانت دی چې گواه ته یې حاجت نشته. که په دې خبره پوه شوې نو په هغه څۀ به دې زیات اطمینان وي چې په پټه یې د خدایې په لار کښې ورکوې. او خبر شه چې صدقه په دنیا کښې تا له بلاگانو مصیبتونو او ناروغیو ساتي او په اخرت کښې له اوره.

**د قربانۍ حق**: دا دی چې لوي خداي ورسره وغواړې نۀ مخلوق.

**د استاد حق**: د هغۀ عزت او ورته د لویې والي ورکول دي، د هغۀ په وړاندې په ادب سره کښیناستل او د هغۀ خبرو ته ښۀ غوږ اچول دي. پکار ده چې په استاد باندې ستا اواز لوړ نۀ وي او که څوک ترې څه پوښتنه وکړي نو تۀ ځواب نۀ ورکوې بلکې پرېږدې چې هغه په خپله ځواب ورکړي. د هغۀ په محفل کښې له چا سره خبرې مۀ کوه دهغۀ په مخکښې د چا غیبت نۀ دی پکار او که څوک د هغۀ غیبت وکړي نو پکار ده چې دفاع یې وکړې دهغه بدۍ او عیبونه پټ او نیکۍ ښکاره کړه، له دښمن سره یې ملگرتیا او له دوست سره یې دښمني مه کوه. که په دغو دندو دې عمل وکړو نو فرښتې گواهي ورکوي چې تۀ د خداي لپاره هغۀ ته ورغلې یې او علم دې ترې زده کړې دی نۀ د خلقو لپاره.

**د زده کونکي او د شاگرد حق**: په استاد باندې د شاگرد حق دا دی چې استاد پوه شي چې خدایې پاک چې کوم علم دۀ ته ورکړې او دې یې د شاگردانو مشر ټاکلې نو پکار ده چې نیک درس ورکړي په شاگردانو سختي ونۀ کړي او غصه نشي چې خدایې پرې خپل رحمت زیات کړي. او که خلق دې له خپله علمه منعې کړل او سختي دې ورسره وکړه نو خدایې به درنه د علم رڼا واخلي او له سترگو به دې وغورزوي.

**د ښځې (ټبر) حق**: په تا باندې د خپلې ښځې حق دا دی چې پوه شې چې خدایې هغه ستا د اسانتیا او محبت وسیله گرځولې ده او دا په تا باندې د خدایې یو نعمت دی، نو عزت یې وکړه او محبت ورسره وکانده. کۀ څه هم په هغې باندې ستا حق زیات دی خو په تا لازمه ده چې ورسره مهربان اوسې.

**د مور حق**: دا دی چې تۀ په دې پوه شې چې په داسې ځایې (خیټې) کښې یې گرځولې یې چې نور څوک دې نۀ گرځوي. او تا ته یې د خپل زړۀ میوه(وینه) درکړې ده چې هیڅوک چاته نۀ ورکوي، تۀ یې په خپلو ټولو غړو سره وساتلې او پروا یې ونۀ لرله چې پخپله وږې وي خو تۀ یې موړ کړې، تږې پاتې شوه خو تۀ یې خړوب کړې، هیڅ پروا یې نۀ وه. چې پخپله جامه ونۀ لري خو تۀ یې پټ کړې پخپله په نمر کښې وه او تۀ یې سیوري ته کړې. ستا په خاطر یې شپې روڼې کړې او له تودو سړو یې وساتلې چې تۀ ورته ژوندې پاتې شې. نو د خدایې له مرستې او د هغۀ له توفیقه پرته د مور د شکریه او منني توفیق نۀ لرې.

**د پلار حق**: خبر شه چې پلار ستا بنیاد دی که هغه نۀ ؤ نو ته به هم نۀ وې. نو کله چې دې په ځان کښې کوم خوښوونکې او ښۀ صفت ولیدۀ، پوه شه چې ددې نعمت اصل ستا پلار دی د خدایې شکر کوه او په همدې اندازه د پلار منندوي اوسه.

**د زوي حق**: دا دی چې پوه شې دې له تا دی او د دنیا په نیکو او بدو کښې په تا پورې تړلی دی او تۀ د هغه د روزنې، د خدایې په لور د هدایت او د خدایې د حکمونو په منلو کښې له هغۀ سره د مرستې ذمه وار یې. نو د هغۀ په کار کښې داسې اوسه چې گوندې د هغۀ په نیکو کارونو تاته هم بدله ملاوېږي. او د هغۀ په بدو تا ته هم سزا.

**د ورور حق**: دا دی چې هغه ستا لاس، ستا عزت او ستا توان دی. هغه د خدایې د نافرمانۍ او په مخلوق باندې د ظلم لپاره وسیله مۀ گرځوه، د دښمن په وړاندې د هغۀ مرسته کوه او خیر غوښتونکې یې اوسه او که د خدایې له اطاعته بغیر گام پورته کوي نو خدایې ته په هغۀ ترجیح ورکوه.

**د نیکې کوونکي حق**: په تا دا دی چې د هغۀ منندوي اوسې او نیکي یې یاده وساتې، د هغۀ ښه والې ووایې. خدایې ته د هغۀ لپاره خالصه دعا وکړې او که وس دې ورسید د نیکۍ بدل یې ورکړې.

**د ملگري او شریک حق**: په تا دا دی چې نرمي ورسره وکړې او په خبرو کښې انصاف هغۀ ته ورکړې. نیکۍ یې یادې ساتې او بدۍ او غلطۍ یې هیرې کړې.

**د گاونډي حق**: د هغۀ په نشتوالي کښې د هغۀ د حقوقو خیال ساتل دي، له هغۀ سره مرسته او که ظلم ځپلې وي نو مرسته ورسره پکار ده . پکار ده چې په عیبونو پسې یې ونۀ گرځې، که بده دې ورځنې ولیده نو پټه یې کړې، که نصیحت ورته وکړې په سختۍ یې یوازې پرې نۀ ږدې او نیک معاشرت او گډ ژوند ورسره وکړې.

**د دوست حق**: دا دی چې په انصاف او عزت سره ورسره ناسته پاسته وکړې او څنگه چې ستا قدر کوي، قدر یې وکړې چې په دې کښې تر تا مخکښې نشي او که مخکښې شو نو بدله ورته ورکړې داسې مهربان ورسره اوسه لکه له تا سره چې مهربانه دی که د گناه خیال او نیت وکړي نو منعې یې کړې او د هغۀ لپاره رحمت جوړ شه نۀ عذاب.

**په کار او مال کښې د شريک حق:** دا دى چې که غائب وي نو د هغۀ په ځايې کار وکړي او که موجود وي نو خيال يې وساتي. د هغۀ مخالف حکم ونۀ کړي او د هغۀ له مشورې پرته کار ونۀ کاندي. د هغۀ د مال خيال وساتي، او خيانت ورسره ونۀ کړي ځکه چې تر څو دوه شريکه له يو بل سره خيانت ونۀ کړي خدايې ورسره ملګرې وي. څوک چې دې منندوي نۀ وي په ځان ورته ترجيح ورنۀ کړي خپل مال د خدايې په اطاعت کښې ولګوي، بخل او کنجوسي ونۀ کړي چې افسوس او پښيماني دې نصيب نشي.

**د پور غوښتونکي حق:** دا دى چې که پيسې يا بل څه لرې وريې کړې که نۀ وي درسره نو نيک ځواب ورکړي چې هغه خوشاله شي.

**له تا سره د مشوره کوونکي حق:** دا دى چې که پوهيږې نو لار ورته وښيې او که نۀ پوهيږې نو داسې کس وروښيې چې په خپله پوهيږي . له چا سره چې ته مشوره کوې که رايې يې له تا سره يو وي نو د خدايې شکر وکړه او که بدله وي نو تهمت پرې ونۀ لګوې. که چا درنه نصيحت وغوښت نو نصيحت ورته وکړه او مهرباني ورسره کوه،

**د لويو حق:** دا د چې د هغوي د عمر او په اسلام کښې تر تا له مخکښې کيدو په وجه يې عزت وکړې تر هغۀ مخکښې روان نۀ شې او مخې مخې ته يې نۀ ځې.

**د وړوکي حق:** دا دى چې مهرباني ورسره وکړې دښوونې، بخښنې او د هغۀ د عيب د پټولو په وخت او له هغۀ سره د مرستې په وخت

**د سوال کوونکي حق:** په تا دا دى چې که له تا څۀ وغواړي نو د هغۀ داړتيا په اندازه يې ورکړې.

## نوي ټکي

پخواني، کذشته گان ټاکل : انتخاب کردن کنځل: دشنام بچول: نگهداشتن ودريدل: ايستادن ښويدل: سل خوردن ځاله: لانه شلول: پاره کردن وغواړي: بخواهيد اچول: انداختن پرېږدې: بگزاريد دنده: کار غورزول: انداختن وينه: خون غړي: اندامها وږي: گرسنه تږي: تشنه خړوب: سيراب سيوره: سايه شپه روڼول: شب بيداري کردن پرته: علاوه(بدون) منندوي: شکرگزار تړل: بستن تا پوري: با تو ملاويږي: داده مى شود وس: توان ظلم ځپلي: ستم ديده ګډون: شرکت ګډ: مشترک ناسته پاسته: نشت و برخاست پور: قرض اړتيا: ضرورت

# د پښتو صوفي شاعر رحمن بابا

رحمان بابا په ۱۰۴۲ هجري قمري کال کښې په يوۀ کلي کښې چې بهادر کلي په نامه ياديږي، پيدا شوې دى. دې په يوه غريبه کورنۍ کښې پيدا شوې دى، پلار يې عبدالستار نوميدۀ، په قوم مومند دى، عبدالرحمان بابا چې پښتانه يې رحمان بابا بولي، د دۀ اشعار که ځير وکتل شي نو دا به څرګنده شي، چې رحمان يو خوږ ژبې او صوفي شاعر ؤ. دۀ د ظلم او استعمار په مقابل کښې هم د خلکو د ذهنيت د روښانه کولو لپاره هلې ځلې کړې دي لکه چې وايي:

په سبب د ظالمانو حالکمانو
کور و ګور و پيښور درې واړه يو دي.

نوي ټکي:

نوميدۀ: ناميده مي شد(نام داشت) پښتانۀ: جمع پښتون (پشتو زبان) ځير: غور و فکر روښانه: روشن هلې ځلې: کوشش

ګرائمر:

راتلونکي مستقبل فعل د حال فعل په شان په درې ډوله دى. ۱. راتلونکې استمراري فعل، ۲. امکاني راتلونکې فعل، ۳. مطلق راتلونکې فعل:

۱. راتلوونکې استمراري فعل (هغه دی چې په راتلوونکې زمانه کښې د یو کار دوام او استمرار وښيي) د استمراري فعل په پای کښې د مستقبل د علامې یعنې (به) په راوړلو سره جوړيږي لکه: له تلل مصدر څخه:

| مفردمتکلم | جمع متکلم | مفرد مخاطب | جمع مخاطب | مفردمذکر غایب | جمع مذکر غایب | مفرد مؤنث | جمع مؤنث |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ځم به | ځو به | ځې به | ځئ به | ځي به | ځي به | ځي به | ځي به |
| لولم به | لولو به | لولې به | لولئ به | لولي به | لوي به | لولي به | لوي به |
| خاندم به | خاندو به | خاندې به | خاندئ به | خاندي به | خاندي به | خاندي به | خاندي به |

| مفردمتکلم | جمع متکلم | مفرد مخاطب | جمع مخاطب | مفردو جمع مذکر غایب |
|---|---|---|---|---|
| پخلا کوم به | پخلا کوو به | پخلا کوې به | پخلا کوئ به | پخلا کوي به |
| پخلا کیږم به | پخلا کیږو به | پخلا کیږې به | پخلا کیږئ به | پخلا کیږي به |

منفي يې داسې جوړيږي چې د "نه" ادات او "به" دواړه د فعل تر مخه راشي لکه: نه به ځم، نه به خورم او نور.....

چې کله استمراري فعل په يوه جمله کښې د فاعل، مفعول، يا قيد او نورو سره راشي نو په هغه وخت کښې "به" ادات د جملې له لومړي توکي سره يوځاى کيږي لکه:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| زۀ به ځم | کتاب به لولم | دې به پاتې کیږي | هغه به خوري | ته به کښينې |
| زۀ به نۀ ځم | کتاب به نۀ لولم | دې به نۀ پاتې کیږي | هغه به نۀ خوري | ته به نۀ کښينې |

مجهول يې داسې جوړيږي: هغه به وهل کيږي، هغه به ساتل کيږي، زۀ به پخلا کيږم، ته به راوستل کيږې او نور..

۲. مطلق راتلوونکې فعل (هغه دی چې په راتلوونکي زمانه کښې د يو کار کول يا نه کول له امکاني او استمراري قيد څخه پرته څرګند کړي) داسې جوړيږي چې د ټولو لام والا مصدرونو کښې د مطلق حال فعل په مينځ کښې يعنې د مطلقيت تر "و" څخه وروسته د "به" په راوړلو سره لاس ته راځي. او د منفي لپاره يې د "به" ادات وروسته "نه" هم زياتيږي لکه:

| مفردمتکلم | جمع متکلم | مفرد مخاطب | جمع مخاطب | مفردو جمع مذکر غایب |
|---|---|---|---|---|
| وبه خورم | وبه خورو | وبه خورې | وبه خورئ | وبه خوري |
| وبه نه غواړم | وبه نه غواړو | وبه نه غواړې | وبه نه غواړئ | وبه نه غواړي |

له دوه توکيز مصدرونو څخه د مطلق حال فعل په مينځ کښې د "به" ادات راوړې شي او د منفي جوړولو لپاره يې تر "به" وروسته "نه" زياتيږي لکه:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| پورې به وځم | کښې به نم | پا به ځم | کر به وکړم | ظلم به وکړم |
| کار به وکړم | پرې به وځم | جوړ به کړم | پخلا به شم | سلام به وکړم |
| پورې به نه وځم | کښې به نه نم | پا به نه ځم | پخلا به نه شم | سلام به ونه کړم |

د تلل، راتلل، ورتلل، درتلل، وړل مصدرونو څخه د قياس په خلاف د شکل بدلولو سره او د په مينځ کښې د "به" په زياتولو سره جوړيږي لکه په ترتيب سره:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لاړ به شم | را به شم | ور به شم | در به شم | یو به سم |

| لاړ به نه شم | را به نه شم | ور به نه شم | در به نه شم | یو به نه سم |
|---|---|---|---|---|

امکاني مستقبل فعل هغه دی چې په راتلونکي زمانه کښې د یو کار امکان او قدرت بیانوي لکه: وبه یې لیدې شي. وبه یې لیکلې شي. وبه یې خوړلې شي. تللې به شي، پرې به وتلې شي، جوړولې به شي او نور

**یادونه**: کله چې دا ټول فعلونه فاعل، مفعول یا قید سره یوځاي شي یعنې په جمله کښې راشي نو "به" ادات به لومړي ټکي سره یوځاي راځي چې مثالونه یې له مخه تېر شول.

مشق

الف: لاندینو پښتنو ته ځوابونه ورکړئ

۱. ولې وایي چې د ګاونډي عیبونو پسې مه ګرځئ؟
۲. زوې ولې د دنیا په نیکو او بدو کښې په پلار پورې تړلې وي؟
۳. د استاد له حقونو څخه دوه بیان کړئ؟
٤. د لمونځ حق څنګه ادا کیږي؟
٥. که یو شریک له بل سره خیانت وکړي نو خداي ور سره څهٔ کوي؟
٦. ولې باید د ډېر عزت او درناوې وکړو؟
٧. رحمن په کله او په کوم ځاي کښې پیدا شو؟
٨. د هغه له شعرونو څخه څهٔ څرګندیږي؟

ب: د ښنم مصدر څخه د مستقبل استمراري صرف وکړئ

## په اسلامي تاریخ کښې لومړی نعت شریف

کله چې د یو مسلمان په مخکښې د نعت شریف ذکر راشي نو مخې سره یې ذهن ته دا خبره راځي چې د خدای د ګران رسول (ص) صفت او فضائل د شعر په ژبه وئیل شوي دي. چرته مو نه دي لیدلي چې یو مسلمان شاعر وي او هغهٔ به د خاتم الانبیاء حضرت محمد مصطفی (ص) په مدح کښې نعت شریف نه وي لیکلی بلکې د مسلمانو شاعرانو اکثر دیوانونه او شعري مجموعې له حمد نه پس له نعت شریف نه شروع کیږي. نو راځئ چې د تاریخ پاڼې ولټوو چې هغه څوک مبارک او نېکمرغه انسان دی چې په اول ځل یې د خدای دګران رسول (ص) په شان کښې نعت شریف ویلی دی نو د تاریخ په پاڼو کښې مونږ ته هغه مبارکه څېره لکه د نمر په نظر راځي او هغه نېکمرغه او مبارک انسان د بنی هاشم خاندان مخور مشر، د خدای د ګران رسول (ص) ترهٔ او د هغه حضرت (ص) نکاح خوان حضرت ابوطالب (رض) دی.

دا مشهوره واقعه تقریباً ټولو تاریخونو په مختلفو طریقو لیکلې ده چې یوه ورځ د قریشو ستر ستر او نامتو مشران د حضرت ابوطالب (رض) کور ته ورغلل او د ګیلې او یوې دړکې په توګه یې ورته وویل چې "ای ابوطالبه! مونږ ستا د لوړ مقام او مشرۍ خاص خیال ساتو، له دې نه مخکښې مو هم درنه غوښتنه کړې وه چې وراړهٔ مو منعې کړئ خو څه نتیجه یې ورنکړه. قسم دی چې نور زغم او صبر نه شو کولې چې هغه دې زمونږ په معبودانو نیوکې او اعتراضونه کوي. یا خو مو محمد (ص) له دغو حرکتونو نه منعې کړئ او یا یې مونږ ته حواله کړئ، مونږ به درته خبر دی د دهٔ په بدله کښې بل ښکلی ځوان درکړو. یا که دې چا ښکلې جینۍ سره وادهٔ کول غواړي یا مال او دولت ته یې ضرورت وي نو ټول ضرورتونه به یې پوره کړو خو زمونږ له

معبودانو نه دې لاس واخلي. او که نه وي نو مونږ به مقابلې ته راووځو نو که بيا مو څوک مړۀ کړل او که چا مړۀ کړو پروا نيشته" له دې ګواښ، دړکې او ګيلې نه پس د قريشو مشران ستانه شول. حضرت ابوطالب (رض) باندې د قريشو د مشرانو دا خبرې ډېرې بدې ولګېدې ځکه چې هيڅکله دې ته تيار نه ؤ چې خپل خوږ وراړۀ قريشو ته حواله کړي او هغوی يې شهيد کړي نو حضرت ابوطالب (رض) د خدای ګران رسول (ص) ځانته راوغوښت او ورته يې د قريشو لخوا وئيل شوې ټولې خبرې وکړې. د خدای ګران رسول (ص) د دې خبرو په اورېدو سره وفرمايل: "کاکا جانه! که دغه کسان زما په ښی لاس کښې نمر او په ګس کښې سپوږمۍ راکوزه کړی او په لاسونو کښې راته کيږدی نو بيا به هم زۀ د دين له تبليغ نه لاس وا نخلم" او په دې وئيلو سره يې زړۀ راډک شو او له اوښکو ډکې سترګې د خپل مهربان کاکا لخوا پاڅېد او روان شو. حضرت ابوطالب ورته اواز وکړ. کله حضور (ص) واپس تشريف راوړۀ نو ترۀ ورته مسکی شو او په ډېره مينه يې ورته وويل: ای زما ګرانه! څه څه چې دې خوښه وي هغه کوه او زما دې په خدای قسم وي چې تا به چا ته ورنه کړم او نه به درته څوک په کږه سترګه وګوري. او بيا حضرت ابوطالب (ع) د خدای د ګران رسول (ص) په شان کښې په دا ډول في البديه نعت شريف وويلو:

| | |
|---|---|
| والله لــن يصـلـوا اليك بجمعهم | په خــدای قــسم چې څوک به هــم نږدې نۀ درته راشي |
| حتی او سـد فــی الـتراب دفينا | تــر هــغه چــې مې د خــاورو لانـدې دا بدن فنـا شي |
| فاصدع بامرك ما عليك غضاضه | کــوه ښــه پــه ازاده هــغه څــه چــې زړۀ دې غــواړي |
| والشر و قو بـذاك منـك عيـونـا | ضــرر د درکــولـــو بـــه يـــې پـوره نــه مــدعـا شي |
| و دعوتنی و نعمت انك ناصحی | مـنم چــې دې دعــوت کـړمـه نو ته زما خېرخوا يې |
| ولقد صدقت و کـنت ثـم امينـا | صــادق يــې هـم امــين يــې نو بــاور ځکـه په تا شي |
| و عــوضــت ديـنا لا مــحالــه انه | بې شکه چې کوم دين دی وړاندې کـړی تــا دنيا ته |
| مــن خــير اديــان الــبريــه ديـنــا | پــه نـــور واړو ديـنونو دغــه دين بــه دې بـالا شي |

مخې سره ولټووښکمرغهاول ځلځېرهمخورسترنامتو ګيلې او يوې دړکېورارۀزغمنيوکېګواښ، دړکې او ګيلېسپوږمۍراکوزهاوښکومسکیکږه

ج: لاندنې متن په ډېر ځير نظر ولولئ او ماضي، حال او استقبال يې جلا جلا وليکئ.

## د امام حسين عليه السلام ځينې ويناوې

✸ امام حسين عليه السلام خپل زوي امام زين العابدين ته په وصيت کې فرمايي: ای زويه! له ظلمه ځان وساته، په تېره بيا په داسې کسانو له ظلمه چې له خدايه پرته بل څوک نه لري (ځکه چې خداي د داسې مظلوم بدله ډېر زر اخلي)

✸ يو سړي له امام حسينه وغوښتل چې د دنيا او اخرت د ښېګړې په حقله ورته څۀ وليکي، امام حسين عليه السلام ورته وليکل: بسم الله الرحمن الرحيم. څوک چې د خداي رضا غواړي او د خداي خوشحالي د خلقو په غصې خرڅه نه کړي، نو خداي به يې په هره چاره او د خلقو په چارو کې بې نيازه کړي او څوک چې د خلقو رضا غواړي او د خلقو خوشحالي او رضا د خداي په غصې واخلي نو خداي يې خلقو ته پرېږدي (يعنې خداي ورځنې خپل کرم او رحمت واخلي)

✸ امام حسين عليه السلام ته يو سړی راغی او ورته يې وويل چې زه په ګناهونو کې پټ يم او له خپلو ګناهونو نه شم تښتيدلی. ما ته نصيحت وکړه. امام حسين عليه السلام ورته وفرمايل چې پينځه کارونه کوه نور چې دې زړه کومه ګناه غوښتله کولی يې شې:

۱. د خداي له نعمتونو استفاده مه کوه، هله ګناه ته مخ اړوه.

۲. که د خداي له دنيا، حکومته او سرپرستۍ وتلی شې نو ګناه کوه.

۳. داسې ځاي ته لاړ شه چې خداي دې نه وينی، بيا چې دې څه زړه غوښتل کوه يې.

**۴.** که د مرګ په وخت خپل روح د خداي له فرښتي ساتلی شې نو کومه ګناه چې دې خوښه وي کوه يې.
**۵.** او که دا طاقت لرې چې کله دې د دوزخ په اور کې اچوي نو ته ترې ځان بچ کړې نو بیا هم ګناه کولی شې.
(نو ته دا پینځه کارونه نه شې کولی پکار ده چې ګناه ونه کړې)

✸ امام حسین علیه السلام وفرمایل: ای انسانه! ستا هستي او پانګه (سرمایه) ستا عمر دی. ستا د عمر هره ورځ چې تیریږي، ستا د وجود یو ټوټه کمیږي (نو پام کوه چې له عمره دې سمه استفاده کوې او که نه هغه فضول او بې ځایه تېروې)

✸ له امام حسین علیه السلام څخه وپوښتل شول چې په څنګه حال کې دې صبح کړه یعنې سهار په څنګه حال کې راپاڅیدې؟ امام وفرمایل: په داسې حال کې راپاڅیدم چې زما خداي او پروردګار ما ویني، د جهنم اور زما په وړاندې دی او مرګ راپسې دی چې راومي نیسي، په دنیا کې او اخرت کې مې هر څه په حساب کتاب دي او زهٔ په خپلو اعمالو پړ یم. داسې نه ده چې څه غواړم هغه وشي او ورته ورسیږم او څه چې مو نه دي خوښ او نه يې غواړم. له ځانه لرې کړی شم ځکه چې ټولې چارې د بل چا(خداي) په لاس کې دي که وغواړي عذاب راکوي او که خوښه یې وي بخښي مې. نو کوم یو فقیر تر ما ډیر فقیر دی.

✸ امام حسین علیه السلام فرمايي: ځینې کسان د جنت او بهشت په امید د خداي بندګي کوي چې دا بندګي او عبادت د تاجرانو او سوداګرانو عبادت دی، ځینې خلق د جهنم له ویرې د خداي عبادت کوي چې دا د غلامانو او مریانو عبادت دی، (یعنې که د مالک له سزا ونه ویریږي خبره نه مني) او ځینې کسان د خداي عبادت د شکر او د نعمتونو د منني او شکریه لپاره کوي چې دا د ازادو او پتمنو عبادت دی او دا د عبادتونو تر ټولو لوي او ښه ډول دی.

✸ خداي تعالي د هیچا طاقت تر هغه وخته نه کموي چې فرائض او واجبات يې کم نه کړي او د چا وس تر هغه وخته نه کموي چې ذمه واري او دندې يې کمې کړي (یعنې هر چاته د هغه د طاقت او وس مطابق ذمه واري او فرض سپاري).

✸ ستاسو بدله له جنته علاوه بل څهٔ نه ده نو ځان په نورو مه خرڅوئ ځکه څوک چې په دنیا راضي شي (یعنې مقصد يې یوازې د دنیا ګټل وي) نو په ډیر سپک او پست شي راضي شوی دی.

✸ د حقو له منني او پیروي علاوه عقل په بل څه نه کامليږي.

✸ د تېرو نعمتونو شکر د دې سبب کیږي چې خداي پاک تا ته نور نعمتونه درکړي.

✸ یوازې هغه کس امانت دار بوله چې له خدایه ویریږي.

✸ له امام حسینه پوښتنه وشوه فضیلت او لوړاوی په څه کې دی؟ وې فرمایل: د ژبې مالکیدل (یعنې په خپلې ژبې کنټرول) او نیکي او ښیګړه کول.

## نوي ټکي

ښیګړه: نیکي    په تېره بیا: بیش از همه    چاره: دنده/کار/فعل/وسیله    مخ اړول: روکردن/روګرداندن    پاڅیدل: بیدار شدن/بلند شدن    وړاندې: جلو    راومې نیسي: او مرا بگیرد (نیول: گرفتن)    پړشول: شکست خوردن/تسلیم شدن
شکریه: مننه/تشکر    پت: غیرت، پتمن: غیرتمند    وس: طاقت/توان    بوله: بپندار/بدان

# دولسم امام (عج)

زهٔ د کوم ځاي نه شورو کړم ستا ثنا
چې یم ډیر عاجز بنده تهٔ يې اقا

اول حمد کوم د رب العالمین
بیا سلام وي په احمد مجتبی

خدایا ډیر شکر دی ستا په نعمتونو
چې دنیا ته دې راواستول اولیاء

څوک دې وساتل جنت کښې بیا بهر شول
چا کښتۍ ته دې امان کړو له دریا

څوک خلیل دې ځان ته جوړکړلو اعلی شول
څوک دې بې پلاره پیدا کړو په دنیا

رسیدل که څوک د تا درګاه ته غواړي
لاره ښه نشته له دغو نه سیوا

په هر وخت کښې شریعت حافظ موجود ؤ
هیڅ یو دم نهٔ ؤ خالي له اوصیاء

اخر دا چې مبعوث کړو مصطفی
مقدم دې کړو په ټولو انبیاء

بیا دې اجر رسالت ورته قرار کړو
لا اجر مګر مودت قربی

بیا فرمان کړو دا رسول کبریا
ما نه پس به وي علي ستاسو مولا

وینه ستا وینه زما ده اې علی
ستا په وینه به وي حق باطل جدا

میدانونه بیا علي فتح کولو
چرته بدر او خیبر چرته حنین کښې
بیا په بغض کښې د علی عالم راتول شو
د حسن جنازه غشو لاندې راغله
بغض یې پلار سره شهیدان ورته زامن کړې
هدایت ډیوې ورو ورو په مړې کیدو شوې
چرته لاړلو حسن چرته حسین
چرته لاړلو صاحب زمونږ د ټولو
اې فرزنده د آدم او د حوا
اې فرزند د خدیجه او فاطمه
چرته لاړشم چرته لاړشم چرته لاړشم
اې امام انس و جانه راشه راشه
د نرګس ګله یو وارې مخ ځرګند کړه
اوس د ظلم دا تیرې په ختمیدو شوې
هغه نمر به له وریځو مخ سرګند کړې
دا د ظلم سمندر په قرار شي
ناخدا د کشتۍ راغلو د اسلام
چې لرزان شي انتظار کښې وجود ستا
تَنَزُلْ د هیولا به هله خلاص شي
اې رحیمه ته رحیم ته که رسیږې

که ممبر وې که محراب که وې صحرا
قاسطین او مارقین یې کړو فنا
کړو شهید یې حسنین کوې بُکا
حسین جان شو مسافر د کربلا
څه عجب ظالم دستور دی د دنیا
ستوري نشته په اسمان نشته رڼا
چرته لاړ هغه آل د مصطفی
اَیْنَ الطَّالِبُ مَقْتولِ کربلا
اې فرزنده د یاسین او طه
اې فرزند د مصطفی او مرتضی
نه پوهیږم کړمه هر وخت دا دعا
کړه د عدله یو ځل ډکه نړۍ بیا
پسرلې راوله غوټې شه په خندا
لرې نه ده چې یو وړځ به شي صبا
په هر ځاي کښې به شي سپینه ورځ رڼا
د اسلام د کشتۍ راغلو ناخدا
اوس مو هیڅ ویره نشته له دریا
نو بیا پوه شه منتظر یې په ریښتیا
چې د روح غذا کړی ذکر د اشنا
کړه طلب چې رحم هغه وکړي په تا

(محمد رحیم دراني)

ضرب المثالهای پشتو با ترجمه فارسی:

| | |
|---|---|
| ۱. چې څه کرې هغه به ریبې | چاه کن را چاه درپیش |
| ۲. سپي ته ډوډۍ واچوه چې کورې شي | دهان سگ را به لقمه ببند |
| ۳. دنیا د ارتې منګوټي دي | دنیا همیشه به یک قرار نمي ماند |
| ٤. مار چیلچلې له پړي هم ویریږي | مار گزیده از رسیمان مي ترسد |
| ٥. څه چې په زړه کښې هغه د خُلې نه اوځي | هر چه در دل است از دهان بیرون مي اید |
| ٦. خپل چې لرې شي نو هم پردي شي | از دل برود هر انکه از دیده برفت |
| ٧. خوی بد بهانې ډیرې | دل عیار بهانه بسیار |
| ٨. دا ګز او دا میدان | این گوی و این میدان |
| ٩. له بارانه تښتیدم د ناوې لاندې مې شپه شوه | از باران زیر ناودان گریخت |
| ۱۰.اوبه چې له سره تیرې شي نو څه لیشت او څه نیزه | اب که از سر گذشت چه یک نیزه و چه یک بالشت |
| ۱۱. خپل څادر سره پښې غزول پکار دي | پا را باید به اندازه گلیم دراز کرد |
| ۱۲. په پښتنه سړی کابل ته رسي | با پرسان مي شود چین بروي |
| ۱۳. هر ګل سره ازغي دي | کسي که گل مي خواهد باید منت خار بکشد |
| ۱٤. مار چې سوړې لره ورشي اخر سم شي | تا مار راست نه شود، به سراخ نه رود |
| ۱٥. د ځان صفت کول غُل خوراک دي | تعریف خود کردن پنبه خائیدن است |

| | |
|---|---|
| ١٦. توکلې لاړې خُلې له بيرته نه راځي | تيري که از کمان بيرون جست ديگر بر نمي گردد |
| ١٧. اول طعام بيا کلام | اول طعام باز کلام |
| ١٨. چې بد ګرځي بد به پرزي | چاه کن هميشه در چاه مي افتد |
| ١٩. چې له کوم تالي وخورې په هغې کښې پښې مه ږده | جای که نمک خودري نمکدان مشکن |
| ٢٠. په ډېرو قصابانو کښې غوا مرداريږي | خانه ای که دو کدبانو باشد خاک تا زانو باشد |
| ٢١. اوده او مړ يو دی | خواب برادر مرگ است |
| ٢٢. بدل په بدل روا دی | العين بالعين والسّنُّ بالسن |
| ٢٣. کور کښې دانه نه لري او په ژرنده وار نيسي | دري که نه داري دربان چه مي کني |
| ٢٤. د صبر ميوه خوږه وي | صبر مفتاح کارها است |
| ٢٥. سختې پسې راحته وي | رنج بکش تابه گنج برسي |
| ٢٦. پټ غل بادشاه دی | دزد ناگرفته پادشا است |
| ٢٧. خړ سپی د ګيدړ ورور دی | سگ زرد برادر شغال است |
| ٢٨. ديوالونه هم غوږونه لري | ديوار هم گوش دارد |
| ٢٩. د بد اصل په دوستۍ سړی پښيمان شي | روح را صحبت ناجنس عذابست اليم |
| ٣٠. په خوږه ژبه دښمن هم دوست شي | زبان خوش مار را از سراخ بيرون مي اورد |
| ٣١. زور په زور ماتيږي | سنگ را سنگ مي شکند |
| ٣٢. د صبر ميوه خوږه وي | صبر مفتاح کارها است |
| ٣٣. سل دې ومره يو دې مه مره | صد نفر مثل يک نفر نه مي شود |
| ٣٤. خر که تر مکې لاړ شي چې بيرته راشي هغه خر دی | الاغ اگر تا مکه هم برود باز هم الاغ است |
| ٣٥. تور خر په صابون نه سپينيږي | الاغ سياه با صابون سفيد نمي شود |
| ٣٦. د اوسپنې چنې چيچل دي | راه باريک است و شب تاريک و منزل بس بعيد |
| ٣٧. د صبر کارونه د خېر وي | دير ايد درست ايد |
| ٣٨. چرګې له د سلائي داغ هم بس دی | در خانه مور شبنمي طوفان است |
| ٣٩. د ترو باران کله کله وي | هر روز عيد نيست که حلوا خورد کسي |
| ٤٠. چې اجل يې راشي نو څه ورته بهانه شي | صيد را چون اجل ايد سوی صياد رود |